


# د عبدالحمید مومند فرهنګ






محمد آصف صمیم

۱۳۸۱ هـ ش

# د کتاب پېژندنه:

| | | |
|---|---|---|
| د کتاب نوم | : | د عبدالحمید مومند فرهنګ |
| لیکوال | : | محمد آصف صمیم |
| خپرندوی | : | احسان خپرندویه ټولنه |
| کمپوزر | : | عبدالوسیم عزیز |
| چاپ نېټه | : | ۱۳۸۱ زمری |
| خپرنی لړ | : | (۱۴) |
| چاپ شمېر | : | ۱۰۰۰ ټوک |
| بیه | : | (۳۰) روپۍ |
| پته | : | د احسان خپرندویې ټولنې کتابپلورنځی جنګی محله صدف پلازه لسم دوکان پېښور تیلیفون: ۲۱۰۵۰۱ |

# ډالۍ

نېك انسان، سپېڅلي پښتون او خوږ ژبي شاعــر شـــهاب بنـــوخي او ګران ملــګري حقيــق الاسلام مومنــد تــه چــې کــه مينــه او هڅونـــه يـــې نــه واى، بويـــه کــه زه ددې فرهنګوټي د کښلو جوګه شوى واى.

زړه مېښت او نـازولي شاعر، ليکــوال، څېړونکې او نقاد ملګري ښاغلي زبيرحسرت ته چې له حميد بابا سره د مينې په پار خپلـې ځيګر ټوټې ته "عبدالحميد" وايي.

# نیولیک

# د خپرندويې ټولنې يادښت

درانه لوستونکي پوهېږي چې بنسټيز او څېړنيز کار خورا ډېر زحمت او زياته حوصله غواړي - د عبدالحميد مومند فرهنګ، په نامه دغه اثر چې ستاسې ګوتوته در رسيدلی، د هېواد د تکړه ليکوال او څېړونکی محترم محمد آصف صميم د هڅو او زيار نتيجه ده، چې له ډېرو پلټنو او څېړنو نه وروسته يې په ښکلی بڼه ترتيب او کښلی دی. ددوی دا او دې ته ورته نور علمي او ادبی څېړنيز آثار د قدر او ستايلو وړدي.

احسان خپرندويه ټولنه په داسې حال کې چې دغه اثر د پښتو ژبې د مينه والو او د عبدالحميد مومند بابا په څېر د درنو علمي او ادبي ستېو د پلټونکو د معلوماتو او ادبي سويې د لوړتيا په لاره کې يوه ښه اضافه بولي. صميم صاحب ته مبارکي وايي او په دې هيله ده، چې ګران لوستونکي به ددغه با ارزښته اثر له محتوی څخه رغنده او په زړه پورې استفاده وکړای شي.

په درناوی

عبدالهادي ملا خېل

احسان خپرندويه ټولنه - پېښور

۳ زمری ۱۳۸۱ هـ ش

# د عبدالحمید مومند، ژوند آثار او فرهنګ

عبدالحمید مومند د پښتو شاعرۍ د اسمان هغه ځلاند ستوری دی، چې تر څو د پښتو ادب نړۍ ودانه وي. دا ستوری به په ځلا وي.

حمید بابا د یوه نازکخیال، خوږ ژبي او مضمون پنځوونکي شاعر په توګه د پښتو شعر رنګین، خوندور او ژوندور (تلپاتې) کړ. هغه د خپل لوړ الوت په زور د خیال پر عرش او د اسمان پر هغو شنو وګرځېد، چې د عقل او شعور وازره پکې لوخړه کېږي او هغه د ارواښاد پوهاند رشتین خبره:

"د حمید شاعري د استادۍ شاعري ده. د ازاد تخیل او ابتکار شاعري ده، دده په شاعرۍ کې د دریاب د شګو شمېرل اسان دي. دلته پر اسمانونو ګرځېده د سترګو د رپ کار دی دلته د تخیل دروازې ډېرې لوړې اودنګې دي، دلته د قدرت او طبیعت ټول مناظر غوړېدلي او تر سترګو لاندې پراته دي حمید د نازکخیالۍ او خیال پالنې نوی مکتب پرانستی دی، ځکه ورته د پښتو بېدل وایي"

**زوکړه:**

د حمید بابا د زوکړې د سمې نېټې په ټاکنه کې که څه هم زموږ ادبي تاریخوال یوه خوله نه دي، خو کوم زوکال چې ټولو منلی دی، هغه له ۱۰۸۰هـ راډیخوا اټکلولای شو او همدارنګه یې د مړینې نېټه د حمید بابا د وروستۍ منظومې فقهي مثنوي (شرعة الاسلام) د کښلو له

نېټې (۱۱۴۸) نه جوتولای او اټکلولای [illegible] بر لږه تر دغه کاله يې ژوند با وري دی.

**آثار يې:**

حميد بابا "په پښتو کې د يوې نوې ليکلار (سبك) پر نوښت سربېر، د خپلونو ښتګرانه هڅو له امله هم د زيات حق وړ او د لومړۍ پوړۍ خاوند شاعر دی، چې تراوسه يې څلور منظوم اثره جوت دي:

**۱- ديوان:**

د حميد بابا ديوان چې په ادبي حلقو کې په درومرجان يادېږي او ختيځپوهانو هم په همدې نامه نوملی دی. دا ديوان چې تردې وخته اته ځله خپور شوی دی.

**۲- نيرنګ عشق:**

دا د حميد بابا په داستاني مثنويو کې هغه لوړ شهکار دی، چې په پښتني ادبي حلقو کې د پوره نامه خاوند اثر دی. نيرنګ عشق د عزيز او شاهد، د مينې سوخند داستان دی، چې په ازاد ډول په خوږه مثنوی ژباړل شوې ده. نيرنګ عشق تراوسه څلور ځله چاپ شوی دی لومړی پر ۱۲۸۴ق د پېښور په مصطفايي مطبعه کې چاپ شوی دی. دويم ځل پر ۱۲۹۹ د دهلی په هندو پريس کې دپياري لال په څار نه په ۸۲ مخو کې چاپ شو. درېيم ځل د يوې نيمګړې خطي نسخې له مخې ښاغلي همېش خليل په ورکه خزانه کې خپور کړ. څلورم ځل د پښتو ټولنې له خوا د اروانباد پوهاند رشتين په زيار سريزه او سپرنه (وييپانګه) پر ۱۳۴۸ کال چاپ شو.

**۳- شاه و ګدا:**

داد حميد بابا بله داستاني منظومه ژباړه ده. دغه مثنوي د هلالي چغتايي (۹۳۹ ق مړ) د پارسي "شاه و درويش" ژباړه ده، چې حميد بابا د غلام محمد اخونزاده په سپارښت کړې ده او ټول بيتونه يې (۹۰۰) دي

حمید بابا ددې داستان له ژباړې نه پر ۱۱۳۷ هـ کال وزګار شوی دی. د شاه و ګدا دا ژباړه تر اوسه دوه خله چاپ شوې ده. لومړی پر ۱۲۹۹ق کال په ۷۴ مخو کې د دهلي په هندو پریس کې دپیاري لال په څارنه او دویم ځل پر ۱۹۵۷م کال د ښاغلي همیش خلیل لـه خوا پـه ۲۰۳ مخو کې په پېښور کې چاپ شوه. ددی داستان انتقادي متن د پوهاند عبدالشکور رشاد په لارښوونه استاد جلال الدین خان د خپلې علمي ترفیع لپاره تیار کړی دی.

## ۴- شرعه الاسلام:

دا د حمید بابا څلورم اثر دی چې موندنې یې حمید پوهانو او پښتو د ادبي تاریخ څېړونکیو ته د څېړنې نوی ورپرانیست. ددې اثر موندلو چې حمید بابا پر ۱۱۴۸ ق پای ته رسولی، زموږ د خوږ ژبي شاعر ژوند تر دې کاله راوغځاوه.

شرعه الاسلام یو فقهي اثر دی. چې ۵۸ فصله او ۲۳۰ مخونه لري. خو د سر له خوا نیمګړې دی له ۳۱ فصله پیلېږي او د شتو بیتو شمېریې ۷۵۰۰ ته رسي. دا نسخه د اروابناد دوست شینواري په زیار د افغانستان علومو اکاډیمی له خوا په کابل کې خپره شوې ده*

اوس چې د حمید بابا او آثارو په باب یې دومره څه وویل شول. نو پر دغه فرهنګوټي یې لږه څرګنده رڼا اچوو.

دا فرهنګ په ماشوخېلوکې د حمید مومند د ادبي جرګې د ژمنو غړیو ښاغلیو شهاب بنوڅي او حقیق الاسلام مومند په زیار د ۱۳۸۰/ ۲۰۰۱م په زمري میاشت کې د حمید بابا په باب د جوړېدونکي سیمینار لپاره ددوی په غوښتنه او هڅونه په ډېر لنډ تنګ وخت کې شوی و او تر څه وخته وړاندې پورې راسره همداسې پروت و. خو څه

---

* د لیکنې په دې برخه کې له دغو آثارو ګټه شوې ده

۱- د عبدالحمید مومند دیوان- د پوهاند رښتین په زیار ۱۳۳۰

۲- نیرنګ عشق- د پوهاند رښتین په زیار ۱۳۴۸

۳- د عبدالحمید مومند دیوان- د سرمحقق زلمي هیواد مل په زیار ۱۳۶۳

۴- د عبدالحمید مومند یاد

موده مخکې چې ښاغلي عبدالهادي ملاخېل د احسان خپرندويې ټولنې د جوړولو تا بيا وکړه او د آثارو په خپرونو يې لاس پورې کړ، نو زما ددې فرهنګوټي ياد هم وشو خو خبره پکې داوه چې دا خو ما هغه مهال يوازې دسيمينار لپاره د يوې اورول کېدونکې ليکنې په توګه د پښتو وييونو (کلماتو) لپاره ځانګړې کړې و، خو وروسته چې يې احسان خپرندويې ټولنې په ورين تندي، بلکې پـه هڅونـه د خپـراوي ټيرواهه، نو وړ مې وګڼله، چې بويه د حميد بابا د شاعرۍ د مينه والو لپاره پرې يوه پشپړانده بيا کتنه وکړم او پر پښتو سربېره دده په څلورو واړو آثارو کې دراغليو پارسي او عربي وييونو- چې د هغه مهال په شاعرۍ کې ډېر دود وو- زياتونه هم پرې وشي، نو بس هغه تېر نيمګړی کار مې بيا له سره د نوي هغه پر زياتونه واوډه. چې دادی ستاسې په مخکې دی.

ددې فرهنګوټي د وييونو د ژباړې پروخت له شتو ستونزو پرده پورته کول راته له ژبپوهانو او وييپوهانو نه د ځان دخلاصون لپاره اړين ښکاري، بويه چې هغو ته هم نغوته وکړم:

**الف**: له هر څه لومړی خو د وييونو په ټاکنه کې ټکنی وم، چې ايا دغه چوڼلي ياغوره کړي ټول وييونه ښاغليو لوستوالو ته هم د مانا وړ وييونو په توګه د ارزښت وړ دي؟

**ب**: د وييونو د ژباړې پر وخت مې کـه څه هم زيات زيار ګاللی، چې په بېلګه کې راغلي ويي ته خپله آره او کـه نـه وي ورنـژدې مانـا ولټوم، خو چې کله کله بيا نهليی شوی يم؛ نو له کښلې مانا سره مې په ليندېو کې يوه پوښتنښه (؟) هم ايښې ده

۳- دويې دويون (تلفظ) د ښه تراڅرګندونې او جوتونې لپـاره مې فونيميکي سمبولونه د قاموسي اړتيا په دود ورسره کښلي دي. خو لکه چې تاسې ښاغلي به يې ووينئ، چې د پښتو، عربي او پارسي فونيمونو او مورفيمونو د څرګندونې په برخه کې دغه نړيواله فونيميکه الفبې بيا

هم ښوسې ده، په تېره د عربي توريو (ث،ح، ذ،ص،ض،ط،ظ) په اړه، خو بيا مې هم له ناچارۍ لوټه کېښووه او پرې تېر شوم. هيله ده زما ښوسي او اړتيا به زما په کمزورۍ کې وشمېرئ.

په پای کې د ګران او ځوان خيرمن کمپوزګر ښاغلي عبدالوسيم "عزيز" له زيارګالنې يو جهان مننه کوم، چې د کمپوز او هم د بيا بيا زياتونو پر وخت مې ډېر زيات وکړ اوه. د مينې او مننې دواړويې پوروړی يم.

نمانځنه

محمد آصف صميم

۶/۵/۱۳۸۱

# ا

**ابا eba**: ځان ژغورنه، ډډه کول، نه منل، نټه (انکار)

کــه مــې څه ځــې ابــا کولــه نــاووېښت
که به ما هر څو انکار کاوه، ده لاغــوښت
شاه وګدا ۴۹

**ابتلا ebtela**: ازمېښت، په بلا کې پرېوتل، اخته کېدل

د مجنــــون د عاشـــقۍ پــــه زوربـــلا يو
دليلـــــى د نايابــــۍ پــــه ابتــــلا يو
نيرنګ ۹۹

**ابته abata**: حبطه، بابېزه، ضايع

چــې خــواري مــې ابتــه، محنــت بربــاد لاړ
يـــار مـــې دا ګوزاري ابـــد الابـــاد لاړ
نيرنګ ۲۰۰

**ابره Ibra**: ګټه، حاصل، دعا، باور

چې داخل په مقبرې شي
دی ګويا په دا ابرې شي
شرعه ۲۲۸

**ابلک ablkák**: ابلق، برګ

که يې کار په يوه رنګ وی
نه به وی اســمان ابلـــک
درومرجان ۵۴

**اتوب** atob: د اوړو اوماچ. د اوړو شیره. لیټی

نه دی کم دا سخاوت تر لیونتوبه
دا غوړي وریجې بتر دی تر اتوبه
تیرنګ ۲۲۰

د حق د میلمستوب
د سوکړې وي. که اتوب
حرام وي. بل اتوب
لي بل په سوب
تیرنګ ۱۸

**اثرپذیر** aspazir: اغیزمن. اغیزمنل

چې شهد په آه فریاد د غریز خیر شو
نه دی په لکه موم اثرپذیر شو
تیرنګ ۵۶

**اجابت** ejabat: منل. هوکړه

په سینه د اجابت شګوفه واشود
د شهد حمېشه خوله په حرف ګویا شوه
تیرنګ ۱۰۹

**احتشام** ehtesam: د بدبده. شان. مشمشه

د نو خط د خال و خط په احتشام زو
د غریب مسافر په صبح و شام زو
تیرنګ ۹۸

**احد** ahad: یو

هر احد چې د سرود په نغمه تاخي
نه په ... سي کنه موم په لمبه ځاځي
هر احد مست و شهید د عشق په تورد
بې خبر د صبر. زهد له دستورد
تیرنګ ۴۱

**احرام** ehram: د حج د ... وخت حلال شیزونه پر ځان حرامول

هر اندام د ګل اندام پخپل حرام
ما تر وه د هر محرم د حج احرام
تیرنګ ۱۳۰

اختر extar ستوری. اصل. جوهر

نجابت یې خانه زادو د ګوهر
سیادت یې اعتمادو د اختر
تیرنګ ۱۰

اختراع extera نوی را ایستنه. نوی جوړونه

دی سالی لره کباب، رقص، سماع دی
د قیامت کښېناستنه محض اختراع دی
تیرنګ ۵۰

اختلاط extelat ګډېدنه. ګډون. خپسورتیا. آزادی. جوړه کېدنه. جفت

خوږه ژبه یې د خستنه ورسره
اختلاط و نیست له تیره ورسره
تیرنګ ۱۸۴

ادا ada رسول. ورکول. نخرې. ښیی

یو ګدایی په جمال مین فدا و
چې یې زړه دده په عشق سره ادا و
تیرنګ ۶

ادنی adna ډېر ټیټ. کم. کوز

چې ادنی حسن دده له فراش ویښ شي
د کشمیر د ګلو زړه پسې مېښ مېښ شي
تیرنګ ۹

ادینه adina جمعه. د جمعې ورځ

په زړه یې د جمال ورځې کینه کړه
هر ساعت یې پیدایی په ادینه کړه
تیرنګ ۴۱

ارشاد aršād نصیحت. لارښوونه

څه ارشاد کړ یې شهي صاحب ارشاد نن
دا په کار د عاشقی کې استاد نن
تیرنګ ۷۶

**ارم arām**: د شداد باغ. جنت

رنګ وبوی لري د ګل. عنبر دده
د ارم آرام ببني ګلزار دده
سرګ ۸

**اروړه arorá**: تاوان. زیان. کینه. رخه

چې پرې وشي کفايت
د دنيا د خساست
که په خدای ترې په پل موږ
وزک د دې ګنا اروږ
مرغه

**اړی aráy**: جنجال. لانجه. شخړه. پنديز

چې مهتر کا د کهتر مرد اړی
بدلوي له سادګی شال په شړی
دردمن ۱۳۶
په دا شان يوه کړي. يا دوه کړي
مرد ونښته د جنګ د ګړ اړی
سرګ ۱۷۰

**استغنا estegnā**: بډايي. نه اړتيا. بې پروايي

د عشاق د خستګی په تمنا يو
د خوبانو د خوبي په استغنا يو
سرګ ۱۴۹

**استون astun**: استوکه. استوګنه. اوسېدنه. ګوزاره

چې له خيلو. سه استون کا
له هغوی خدای پيوستون کا
مرغه ۱۶۷

**اسرار asrār**: رازونه. د سر (راز) جمع

په هزار پردو يې پټ ساته اسرار خپل
په دا کار کې يې اغيار کړه د يوار خپل
سرګ ۷۶

**اشراف ašrāf**: مخور، مخوریز، ساهوکان

میــده نـــه شـــي پـــه دادورِ مـــدور
ســتا پـه طـور اشـراف کُـش سِـفله پـروز
نیرنگ ۱۶۳

**اشراق ešrāq**: ځلېدل، پړکېدل، بلول

چې بیـان بـه یـې واصـف د سـاق اشـراق کـړ
کـافوري شـمعې بـه اوربـل پـه تـاراق کـړ
نیرنگ ۱۵۹

**اصاغِر asāğer**: دا صغر (وړوکی) جمع

اصـــــاغر، اکـــــابر واړه غنیمـــــت دي
کـه یـې ځوك پـه نعمت پـوه شـي لـوی نعمـت دی
شاه وگدا ۳۷

**اصلا aslā**: ګر د سره، له سره، هیڅکله، هډو

کـــه دســـپي پـــه پـــیروۍ مومـــي یـــار ځوك
پـه دا کـار دي اصلانـه کـاء، عـارو ویـار ځوك
نیرنگ ۷

**اطوار atwār**: د طَور (دود، لاره چاره، خوی بوی) جمع

چـې بـارش ابـر بـهار پخپـل اطـوار کـړ
وصــدف تـــه یـــې عطــا دُرِشـــهوار کـــړ
نیرنگ ۱۱

**افتان aftān**: لوېدونکی، پرېوتونکی

ور روان، افتـــان، خـــېزان پـــه اســـتقبال شـــو
پروانـــه غونـــدې پـــه اوریـــې پروبـــال شـــو
نیرنگ/۱۴۶

**افراط efrāt**: له اندازې تېرېدل

موافـق لـه خپلـه توانـه زیسـت بسـیط کـړه
مـه افـراط کـوه یکلختـه. مـه تفریـط کـړه
نیرنګ/۲۱۹

افسون afsun: دم، پړ، ووده

بې و سواسه یې لـه لاسه مفتـون ونیـو
پـه دارنګ یې ورتـه جام د افسـون ونیـو
نیرنګ/۲۸/۱۰۷

اقامت eqāmát: استوګنه، استوګه، تیکاو، دربدا

چې یې سروه د قـامت پـه اقـامت شـوه
پـه جـهان کې غوغـا ګډه د قیـامت شـوه
نیرنګ ۱۲ ۱۱۴ ۱۵۵

اګر agár: په عودو لړلی ډکی، خوږ بویه لوګېدونکی لرګی

چې عزیـز دراز اګر پـه آتـش کـېښو
لاعـلاج لـوګي یـې بـوی د عنبر پـرېښو
نیرنګ/۷۸

الامان alamān: ژغورنه، سوله، پناه

پـه غلیـم شـوه مـاتې ګډه ناګهانـه
څنې نـه خـوت بـل اواز، بې الامانـه
نیرنګ ۱۷۱

التفات eltefát: پاملرنه، ځیرېدنه، توجه

کـه هـزار زاري رویونـه کـړه مـلا
خواجـه نـه کـړ التفـات ورتـه اصـلا
نیرنګ/۵

التماس eltemās: غوښتنه، هیله

چې شـاهد پـه دا نغمـه مُتنَبِـه شـو
التمـاس تـه د عزیـز متوجـه شـو
نیرنګ/۴۵

الخبیثـات للخبیثین alxabisāt o lelxabisina: نـاولې د نـاولیو دي، بېلمازانې د بېلمازو دي

خـدای دې مالـه دغـه مینـځه وباسـینه
مـی بـاید چې الخبیثـات للخبثیـنَ
شاه و ګدا ۷۹

**اليوم alyawm**: نن، نن ورځ

تالــه ګلــه ســره څه وکــړه اليــوم
چې لـه باغـه دې بېرون کړ د خپـل قـوم
نيرنګ/۱۶۳

**اماس amās**: پړسوب

دريــا پــه زهــد مــه غولــېږه زاهــده
دا څرېښت بـه دې بـدل شــي پـه امـاس
نيرنګ ۲۱۸

**اماني amāni**: ۱- تړول، پوره ۲- پټ، خوندي، اتباري ۳- په مزدورۍ ورکول

پـه هـر بـاب يې غـم خـواري د مـهماني کـړه
دلـــداده خانفشـــاني يـــار امـــاني کـــړه
نيرنګ ۱۴۲

چـېرې نـه چـې د اميـد پـه امـاني
بـې پـروا شـي د ګنـاه پـه پښېمـاني
نيرنګ ۲۱۷

**امرد amārd**: اومه خوله هلك، ښويه مخى هلك، ښکلى هلك، پيمخى هلك

چـې بـه نـه و، يـو امـرَد پـه مدرسـه کـې
پـل يـې نـه ايښود خِـرَد پـه مدرسـه کـې
نيرنګ/۳

**امنا amanā**: تصديق، قبول، منل

وې يـې نشـته را کـې تـوان ددې وينـا
کـه مـې خـواه نـا خواهـه وژنـې، امنـا
نيرنګ/۱۲۳

**انبساط enbesāt**: پراخوالى، ارتېدل

خـوږه ژبــه يــې واخســته ورســره
اختــلاط و انبســاط کــړه ورســره
نيرنګ/۱۸۴

**آنا البرق analbarq**: زه برېښنايم

لـه تنديـه، لـه شـوخيه پـاى تـا فـرق
مــوذن و پــه اذان د انــا الــبرق
نيرنګ/۱۲۶

**انا النار ennānnār**: موږ اوریو

خس و خار کاندي ددې درودیوار
په بلند اواز دعوې د انا النار
نیرنګ ۲۴

**اندوه andoh**: غم، ویر

چې شاهد په بندبندي، مونږه ازادیو
دی په دا غم واندوه کې، مونږه ښادیو
نیرنګ/۱۶۸

**انفعال enfeāl**: خړکېدل، خړېدل، پیکه کېدل

نه ناکس د چا په اوښکو انفعال کا
نه په بت باندې اثر آب زلال کا
نیرنګ/۳۵

**انکسار enkesār**: ۱- ماتېدل، ۲- عاجزي، تواضع

د نېزو په ځای یې ګوتې د زنهار
اخرونیوی په عجز انکسار
نیرنګ/۱۷۱

**انند anand**: خوښي، شکر

لکه ته چې یې زما په دردو داغ کړې
بلبل نه کړي په ګل هسې انندونه
درومرجان/۱۰۱

**اوتو utu**: توکول، توکل، بد ګڼل، بدپرې ویل

په کینې لور دې لاړې توکا
د شیطان مخ دې اوتوکا
شرعه ۸۰

**اوچې uče**: ناکاره کارونه، بېځایه هڅې، چټې خبرې، پوچې خبرې، ایلتې

خو به شي در ښکاره پوچې
تر مرګ پورې د ژوند اوچې
شرعه/ ۲۱۴

**اودسي awdasi**: اودس لرونکی

دوکانه دي اول ځله

اودسي وکـا په ځله

شرعه/ ۷۸

**اورلګاندی orlagānday**: اورلګوونکی، پساتي

اورلګاندې چې اور ولګا وه لاړه

هغــې جنې لره راغله لکه غاړه

نېرنګ/ ۲۹۰

**اوکې oké**: هوکې، هوکړه، هو، بنه، ژمنه، لوز

چې له چـا وکـړې اوکې

زړه يې کړه په ځای روکې

شرعه/ ۹۵

**اهداد ehdād**: ایداد، سزا

چــې پــه مــادي، هــم لــه مــادي

پــرې نــاحق د بــل اهــداد کــړم

دوومرجان/۶۶

**ایاک والاسد Iyāka-wa-lāsad**: ځان له زمري ژغوره

چې لمبې بـه يې د مـخ چاتـه رسـد کـړ

قدســیانو بـــه ايـــاك والاســد کـــړ

نیرنګ/۳۷

**ایذا izā**: ځورول، ربړول

وي يـې ورسېدم بـس کــه، ومطلـب تــه

نـور مـې لاس د ايـذا مـا چـوه جلـب تــه

نیرنګ/۲۸

**ایسوړی Isoṛay**: پیلوخه، يو غرنی بوټی

نرم پوست، سره سينه درلره ښايي

مه شه هسې سره لمبه لکه ايسوړی

دوومرجان ۱۰۹

ایغر **iğar**: ښتمن، بډای

ارتینه لـوږه، لاغـره
کړې نه بویه ایغره
شرعه

اینده **idna**: ځل، وار، پلا، ساه

چـې حضـرت دي اوبـه کښلـې
پـه یـوه ایـنـده هـم ځښلـې
شرعه/ ۳۳

# آ

**آب ab**: ۱ - اوبه ۲- پت، ښکلا، ځلا، دود

چې د آب سره هوایي شوه ولاړه
دیا قوتو له بازاره ګرمي لاړه
نیرنګ/۲۱۱

**آب حیوان ābehaywān**: د ژوند اوبه، ژووب، آب حیات

د مکتب په لور روان سروي روان شو
له قدمه یې روان آب حیوان شو
نیرنګ/۱۰۵

**آتشبار ātašbār**: سوځوونکی، اورورونکی، اورشیندی

د غمجنو زړو په اه آتشبار ړو
د بې غمو د خوښی په اعتبار ړو
نیرنګ/۹۸

**آراسته ārāstá**: سینګارلې، ښکلې، ډولې

آراسته و پیراسته په کمال حسن
نو خاسته و برخاسته په کمال حسن
نیرنګ/۴

**آستانه āstāná**: درشل، دربار، دلبار

چې قبله د هرولي. د هرنبي ده
آستانه د محمد عربي ده
آستانه په ښکلولو سولوه
زړه له غمه د هجران په دا. غلوه
شاه و ګدا/۱۹ ۹۱

آسیب āsib: ناورین، تکه، غم، مصیبت

بې آسیبه سبب د زنې ورعطا شو
په تش بوی سره یې وارو پارخطا شو
نیرنگ/۱۴۲

آشام ašām: ۱ - ځنبل، نغرل ۲- و څښه، و نغره، دود

که هر څوېې لکه روح په ورو خرام شو
له مشرقه همروزه مغرب آشام شو
نیرنگ/۱۴۶

آشتي āšti: پخلاینه، د لاسا ینه، سوله، روغه جوړه

نرنا حقه مرورخنې په ځنګ لاړ
چې آشتی لره راغلی و، په جنګ لاړ
نیرنگ/۹۵

آشفت āšoft: ۱- پرېشاني، پارېده ۲- لېونتوب ۳- تر هورتیا

لاس په لاس یې د کا کلو له آشفته
د فې قاف نامه د چین په نامه هفته
نیرنگ/۱۱۷

آشفتن āšoftán: پرېشانېدل، مېنېدل، پارېدل

چې سبب د آشفتن، د فریفتن دی
د عاشق، معشوق دادن وګرفتن دی
نیرنگ/۱۲۰

آشوب āšub: فساد، پیلات، انګل، الغاو تلغاو

چې اوده فتنه یې ویښه کړه له خوبه
د ارام کشور یې ډك شوله آشوبه
نیرنګ/۲۶/۶۲/۸۲

آشول āšol: شور زوږ، شور غوغا.

چې پرون پرې غږېده سندرې ډول
نن یې ویر دی په ژړا او په اشول
دروم رجان/۵۹

آلام alamَ: دردونه. دالم (درد) جمع

چې جدایې د طرې په طور لام شو
پیچ وتاب سره په دردو په آلام شو
نیرنگ ۱۱۵

آماج amājَ: نښه. موخه. تکی

چې یو غم ورځنې درومې بل پرې ملې
زه حمید خدای په غمونو کې آماج کړم
درومرجان ۶۵

آمنّا و صدّقنا āmannā -wa- saddqnā: ایمان مو راووړ او تصدیق (پخلی) مو وکړ

ما هم کېښووه رضا په داوینا اوس
بې انکاره آمنا و صدقنا اوس
نیرنگ ۹۷

آهومن ahumanَ: سوبلاند. زګېروي کوونکی

هسې شان له ښهره ووت په کینې
لکه آه د آهو منو له سینې
نیرنګ ۱۶۵

آیین ainَ: دود. ډول. سینګار

که مې دین وآیین لاړ. لاړ شه خوشخویه
اوس له کړو سره د خدای څه کړي بویه
نیرنګ ۳۱

تا به وي ګڼه اسمان په څه آیین
اوبه شوی دی په مخ دروي زمین
شاه و ګدا ۱۴۹

# ب

**باخت bāxt**: بایلات، بایلل

پښتنـــو پـــه هغـــه کلـــی وکـــړ تـــاخت
پـــه سـبب د قديمـــي عـــداوت بـــاخت
نیرنګ/۱۶۳

**بادکښي bādkəşi**: عیب پټونه، څادر پرې غوړول، پرده پوښي

مومنـــــــان دي پـــــــه خـــــــوښی
یـــــو د بـــــل کـــــا بـــــادکښی
شرعه/۹۲

**باده bādá**: شراب، بوړ، بډال

چـې یـې بـاد بـاده د ګلـو وځښي پـاځي
د بلبلـو پـه نغمـو پـه سـرود نـاځي
نیرنګ/۹

**بارې bāre**: ۱ - کشکې. کاشکې ۲- تکیه کلام دی

هـــر نظـــر بـــه لـــه پـــردې دواړه واتـــه
بـــارې بیـــا بـــه شـــرم ننـــګ ځنـــې ســـاته
نیرنګ/۱۶۰

**بال bāl**: وزر، څانګ

د غړنچـې پـه څېر یـې ځان پـه شـالو ونغـښت
د همـای پـه څېر یـې بخـت پـه بـالو ونغـښت
نیرنګ/۶۲

**بالين bālin**: بالښت، سروېړد

چې يې وشلېده د يار دراتلو طمع
په بالين يې بله نه شوه د شام شمع
نيرنګ/۱۶۴

**بانو bānu**: مېرمن، ښځه

دا چې تا سره په څنګ کې هم زانووه
څوك وه؟ خورو لورد چا،کومه بانووه
نيرنګ/۱۷۵

**ببر babár**: زير، شدل، شاړ، ستغ، سپور

ښك نه كا هسې خبرې
چې په چا لګي ببرې
په خوراك كې دې خبرې
نه كه څوك ښتې ببرې
شرعه/۱۳، ۵۸

كاريې دى رورته خبرې
نرمې نرمې، نه ببرې
شرعه/۱۶۱

**بتا botā**: بت، بوت، صنم، معشوق، ښكلى

په غونچه كې به د زړه، زما بتا
په مثال د ګل د بوى ساتمه تا
نيرنګ/۴۵

**بتك baták**: پتك، پتكى د اوبو سفري لوښى، چې اوږې يا غاړې ته پروت وي

ادنىٰ داده چې كړي ډك
دوه حصې شكم بتك
شرعه/۱۸

**بچوى bačə́way** : د پړي يا د مزيو غوټه

مخ يې هسې كروړې وهي د زلفو
چې يې پاس د زړه په سر لګي بچوى
درومرجان/۱۱۰

**بختر baxtár**: د زغرې پوښ، چې له کلك او پېړ توکر نه جوړ وي. په جګړه کې د ځان ژغورنې لپاره اغوستل کېدونکې پوښاك

چې اثر نه کاوه حرف د خود فروشو
لکه توره د لړګي، په بختر پوښو
نېرنګ/۱۴۵

بختر، زغره ورته جال د عنکبوت و
تل ماغزه و سخت هډوکي د ده قوت و
شاه و ګدا/۱۱۱

بختر پوش د صبر، زهد ځنې تښتي
چې په ګورت کا تېره غشي د مژګانو
درومرجان/ ۷۱

**بخښو baxṣo**: پخښو، پښو، ازاد، ارام، خوشې، ايله

يا د ښو خوره
يا په ښو کړه له بدو ځان بخښو
شرعه

**بدرمُنير badremunir**: سپينه سپوږمۍ، څوارلسمې سپوږمۍ

ورته عرض د بېلتانه جو روستم کړي
جلوه ګر بدرمنير به دا تورتم کړي
نيرنګ/۱۳۴

**بدغوني badğunay**: بدمخی، بدرنګ، سپېره، سپېر مخی

هغه دم په يوه دم اور لګووني
د عزيز تر پلاره لاړ هغه بدغوني
نيرنګ/۷۹

**بدله badāla**: اولسي سندره بادوه ييزه (مثنوی)، سندره

دا نسبت به غنميت وګڼې دله
د هوس په خوله به ناري کړې بدله
نيرنګ/۱۷۲

**بدلوهي badlohay**: بد اشتها ،بدخويه

دا بد لوهی نوس دې مور نه شو په بدو
که هر څو دې ايله پرېښو بې دهشته
شرعه/۵۹

**بدیشم badisəm**: بدګڼنه، کرکه

چې لــــه دوی ســــره درېږم

شـــيطان وايـــي بدیشـــم

شرعه/ ۵۹

**بډايي bədāi**: شتمني، ويار، لويي، غرور

بــــډايي پـــه ديـــن دنيـــا

پـــه جامــه کـــوه تـــه ميـــا

شرعه

لـــه عامـــه خلقـــه ســـوا

جامـــه نـــه ښايـــي ســـوا

چې راځاي ځنې بـــايي؟

بــــډايي، خـــود نمـــايي

شرعه

**برايي barāi**: بېګاه شپه، تېره شپه، پرون شپه

لايـو ښکلـی ګل انـدام چې شـاهد نـام و

برايـــي زمونـــږ پـــه کلـــي کـــې مقـــام و

نيرنګ/۱۶۷

**برپای barpāe**: پېل، شروع

څه اثــر لــري د عشـــق خـــوږې خـــبرې

چرتـه وير کاندي بـرپـای، چرتـه سندرې

نيرنګ/۶۹

**برج borj**: مياشت، د کال دولسمه برخه

لمـر سـپوږمی ګويـا دننـه پخپـل بـرج شـو

يـا دوه لعلـه امـانت خونـدي پـه دُرج شـو

نيرنګ

**برخاست barxāst**: درېدل، ولاړه، پاڅېده

"بې" ته "پېښ" له درده دوکه کم و کاست شو

پـه همســايې د الـف څکـه برخاسـت شـو

نيرنګ/ ۱۱۰

**برکښه barkə́ṣa**: ۱- دلیندي ژی، ۲- راوتلی

د کړو وروځو لینده، په لاس برکښه
کاږه غشي د مژګانو سم په نښه
نیرنګ/ ۴۷

چې به ده لینده دو روځو کړه برکښه
د حرم هوسو به ځان کړ ورته نښه
شاه و ګدا/ ۵۷

**برګشته bargašta**: اوښتی، اوړیدلی، نسکور

بې له ډېره غم پریوته خسته
لکه بخت د عاشقانو برګشته
نیرنګ/ ۱۱۶

**برګوټ bargoṭ**: مارغه دی، ښایي ګوربت وي، چې برګوټ یې اړولې ښه ښکاري

دا چې نن ښنې ښې په زرکه ناست دی
دغه باز به که برګوټ ښه ښه
درومرجان/ ۸۵

**بره بړه bárbáṛa** : جګې جګې، جګجګی، زاري

دا خو زه له سادګۍ عشق ته هوس کړم
ګوندې ځوك بولي بلا په بړه بړه
درومرجان/ ۹۱

**برهمن barahamán**: د هند د برهمني مذهب لاربنود، بومیا برهمایي دړې ګونو خدایانو څنې یو

په رښتینې محبت د نل، د من رو
په خطا بتپرستۍ د برهمن رو
نیرنګ/۹۹

**بریښند bresə́nd**: ځلند، ځلاند، بریښاند.

له سړو دې یو سړی وي
نه دې بریښند، نه خړی وي
شرعه/ ۳۶

**بروس brus**: مرور، خواشيني، غرند، مراوي

د نسيم په ځپر پېره په باغ زما كره
د اميد بروسه غونچه مې په خندا كره
شاه و گدا ۳۲

كه هر څو راسره مل ننگ و ناموس شو
د تنگۍ په وخت جدا راځخه بروس شو
چې تر غوړه د شاهد د هوندا شوه
د اميد بروسه غونچه يې په خندا شوه
نيرنگ ۵۴

**بزن بزن bezánbezán**: ووهه، ووهه

په دا هسې طمطراق راغې نژدې
د قاضي په بزن بزن په دې دې
نيرنگ ۴۸

**بساط besāt**: غوړووني، فرش

چې په غم لړلې بخره د مين ده
نه دا هسې د بندي، نه د مين ده
شاه و گدا/۱۲۹

كه مې دا بساط په زړه شي مسلم. ستا
د نور چا نه دى، زما دى سر، قدم ستا
نيرنگ/۱۷۲

**بسمله besmalá**: د بسم الله الرحمن الرحيم لنډيز

چې حاصل يې په بسملې خولې برى كړ
په نېزه يې د الف، اخوند سورى كړ
نيرنگ/۱۱۰

**بسيا basyā**: مېشت، استوگن، قانع

غره نفس لرې ويستم له خاكساريه
ما پخپل وطن بسيا كړې زما ربه
ديوان ۲۳۹

چــې مــې ورکــه کــړه لویــې پــه خاکســـاری
اوس حمیــد شــو پــه اصلــي وطــن بســـیا
د رومرجان ۳

**بشارت basărát**: زیری

بشــارت یــې پــه ســکروټو د مشـــتاقو
قطــره زن شــولکه اوښې د عشـــاقو
نیرنگ ۴۲

**بصارت basārát**: د سر په ستر ګولیدل، د ستر ګولید

ورعطا لکـه صـورت هســې صـورت شـو
بصـارت یـې ښایسـته پـه بصـیرت شـو
نیرنګ ۱۱۶

**بصیرت basirat**: د زړه په ستر ګولیدل، د زړه د ستر ګولید

ورعطا لکـه صـورت هسـې صـورت شـو
بصـارت یـې ښایسـته پـه بصـیرت شـو
نیرنګ ۱۱۶

**بکر bekər**: نوښت، نوی، نالاس وهلی

څو بـالغ نـه شي هلـك پـه صحیـح فکـر
مـات بـه نـه کـا د حمیـد د فکـر بکـر
نیرنګ ۲۱۴

**بګتیا bagatyā**: سندرغاړی، موسیقار، له بګتی سره تړلی

هـــم خلـــوت لـــري هغـــه شـــوخ بګتیـــا
چـــې قـــاضي لـــه ده فریـــاد کـــاوه پـــه تـــا
نېرنګ/۸۰

**بلاخېز balāxez**: بلا پاڅوونکی، بوږنوونکی، پاروونکی؛ داروونکی

چې یـې خونـد د خـوږو شـونډو بـلا خـېزدی
فرمــایلي تــرې طبیــب څکــه پرهــېز دی
نیرنګ/۲۵

بلا غوارې balagwaray جنجالي. پېښو ته ورغاړه وتونکې

چې لـه اسـه د کوهـي پـه غـاړه کـوز شـو
بـلا غـوارې ورته يې بود په بـل رمـوز شـو
نیرنگ ۱۵۵

هغــــي زالــــې بــــلا غــــوارې ناترســــــنې
دا د شــــوارې پــــه ســــرو اخيســــې اســــانې
ولــــې هلتــــه يــــو رقيــــب د ده هسغــــارې
ناســت د ديــو غونــدې بــد شــکله بــلا غــوارې
نیرنگ ۵۷

بلوته blota بلوڅه. بلوسه. نېرى. برغل

کـــ پـــه مکـــر هـــر پلـــو تـــه
پـــه مومـــن د بـــدو بلوتـــه
چـــې اوس نـــه کـــ هـــيڅ بلوتـــه
پـــه وزو پـــه مـــېږو بلوتـــه
تـــور دي دي د دوى بلوتـــه
اخلـــي پتـــه د مـــرګ پلمـــوتـــه
د بهار د څه سرغه

بلهارېدل baharedəl خوړېدل. قربانېدل

نـــه يـــې څرخ تنـــها لـــه ســـره خوارېده
فلـــک لاســـرې څارېده. بلـــهارېده
نیرنګ ۱۴۵

بنات النعش banatonaas بودۍ کټ. د آسمان په سوېل کې اوه غونچه ستورې

ثريـــا . بنـــات النعـــش د بوحضـــر
نه پـه نظـم سره کړ شـو. نـه پـه نـثر
شیدا دیوان ۱۶

بندوق banduq ټوپک

د بنـدوق پـه تـش اواز پـه لـرې تـرې
فرامـوش مـکر افسـون شـو د کيـدړې
نیرنګ ۱۵۲

**بو baw** وهمي. د ار. د دارولو ناځاپي غږ

جې يې ځوان په خوب کې وويني. وه مرى
پاره مستا د بېلتانه همې بوره دى
د يومرجن ۱۱۲

نه دى كړه د عشق په دا تسبيح وهلك تا
كاني بوتي د صحرا تي واره بو
د يومرجن ۷۱

**بوالهوسي bulhawasi** هوسناكي. حرص

د حميد بوالهوسي ناكسي نه ده
په هر كار كي مناسب غور رسي نه دا
نيرنگ ۷

**بوب bob** ښه. سوچه. خالص

غنيمت دې گڼې بوب
مري (په) وخت د مريبتوب
شرعه

**بوبه bobá** (؟)

بلكې. بوبه خو يې ته
د توبې و بني بوبې ته
شرعه

**بوت but** تريو مخى. بروس

سروما د هغه خلق اكثر لوت شو
يار اشنا د فراخى په تنكسه بوت شو
نيرنگ ۱۶۴

**بوخت boxt** ۱- بوښت. ښتي ۲- زوى (نرينه اولاد)

جمع زړه مې تر مې ترمې لكه غوښت شو
توند تو سن مې لكه خر په ختيه بوخت شو
نيرنگ ۲۹

**بور bor** خړ رنګ

كله واغوندي شنه نمري د تكى
كله خړ شي خان له قهره برک وبور كا
ديوان ۳۰

بوړی buṛay: نیمګړی. عیبجن

لــــه هغـــو چـــې و بـــــذی تـــــه ولاړېږي
بنه یې پـروت پـه غړیـو غړنـد او پـه زړه بــوړی
دیـوان ۳۴۸

بوزي bozi: ابل. منونکی. اړ. بېوزله

پخـــوا وخـــت خنـــي بزرګانـــو
د خـــدای بـــوزي بندګانـــو
شرعه ۲۰۶

هــر بــاغي بــوزي بنــده کــاندي اخــلاص
هــر بېشــرم شــرمنده کــاندي اخــلاص
دروم‌رجان ۴۳

بوښتنه boṣtəna: بوښته. لانجه. کشاله. ربړه. شخړه

پـــــه ســـبب د دې بوښتنــــې
پـــــوزې ورشـــــو د پوښتنـــــې
شرعه

د کـــرم پـــه لاس یـــې وکـــاږې ځښتنـــه!
عجمـــي مریـــی دې ډوب شـه پـه بوښتنــه
شاه و ګدا ۳۳

بول bol: لوز. ژمنه

چـې یـې وباسـې تـر خولـې بیـا تـرې جـاروځي
بـــول بولــــم زه حمیــــد د هغـــو بولـــو
ادبي ستوري ۲۱۹

قـول او بـول پـه ژونـد کـې نـه شـي نورولـی
خکـــه خان پـــه قـــول وژنـــي پښتانـــه
دروم‌رجان ۱۰۶

بولی bólay: پښې والا. له پښو سره راځي. ځلوربول. دوه بول

چې یې دم قدم پخساك. خوب و خوارك شه
دی بـتر تـر ځلـور بولـو دا دوه بولـی
دیوان ۳۸۳

بومیا bomyā اشنا. بلد، لاربنود. استوګن

بو دوه کسه خدمتګر له خدمتګار و
راسره کړه په خدمت بومیا د لارو
نیرنګ ۱۹۲

بونډی bundəy په بدلمنی توره شوې ښځه. چې د وژلو پر ځای یې اولس په ګډه پلوري

خو په خوله ورته ویل شي چې بوډۍ وه
کنه عین د قیامت بدده بونډۍ وه
نیرنګ ۱۷۹

بهره مند bahramand برخه من. برخه ور

چې غوغا شوه د شاهد د حسن عامه
عام و خاص یې بهره مند شوله انعامه
نیرنګ ۲۵

بهي behi د مڼې هومره زېړه میوه

سفیدي یې راوړه و هم د سیاهي
صفاسیب اخستی ګر د لکه بهي
نیرنګ ۱۷۵

بیاسته byāsta رسی، اوږدېږي

دا په دا چې په ځای ناسته
خو خوي د شهوت بیاسته
شرعه ۱۵۹

بېت bet کوم ډول عطر او خوږ بويي ده(؟)

بعد از ان دي زېره بربېت
کاندي غوړ په زیابیت
دي خرېل د تولوبرېتو
تخرګ. نوکونه. زېره بربېت
نا روا په روا بېتو
زېر ناف اخیستي بېت
شرعه ۴۳

**بېچاونه** bicāwna: بستره، کټ مخې، د کټ څادر

وېـــې نغښتـــه بـــېڅـــونه ـــې نيـــازې
کـــښې يـــې ښو د قـــده د يـــار پـــه نـــوازې
نيرنګ ۱۴۵

**بېغ** beg: قهرېدلی، په غوسه

کـــه شـــې ملامـــه لـــونو بـــېغ
حـــسب دې نـــه لـــري تـــري دريغ
شرعه

**بينَ الانام** baynalanām: د خلکو تر منځ، په خلکو کې

چې ښکاره هغه ښکاري شاهد تمام شو
جلـوه کر لکـــه آفتـــاب بيـــن الانـــام شـــو
نيرنګ ۱۵

# پ

پاتا pata لاس پورته کول، د مړي ددعا غوښته. فاتحه

خدای مې نـه پـه ګور کـوي. ګـنـې سـتـا سـترګې
پـــه هـــر دم راتـــه کـــوي د مـــرګ پاتـــا
دروم‌رجان ۸

پادېښ pādes زبږه. کړاو. تېږی، بد، ناوړه

زبـه دا څه پــېچ وتــاب شــو راتــه پــېښ
چــې پــه ماېـانـدې يــې کـېـښـودا. پــادېښ
نیرنګ ۳۷

پارسا pārsā پرهېزګار. پاللي

هســې غـشـې يـې پـه زړه وخــوړ زمــا
چــې دوعــظ دم يــې نــه واهــه پارســا
نیرنګ ۲۷

پازه pāza اغېز. توندي. مړانه. زړورتیا. تته ږه. پار (خاطر) شرم. پند

پـه دب دب يې شـود د عشــق پـازه د پاسـه
د ادب ذره يـــــې پرېوتـــــه لـــــه لاســـــه
نیرنګ ۲۷

پاسباني pāsbāni ځارنه. ساتنه

پـه هـزار مهربانــې تــرې قربــانې شــو
جـان فشـان ديـار د زړه پـه پاسـبانې شـو
نیرنګ ۴۹

**پاسخ** **pāsox**: ځواب. غبرګون

دالوبي ګوره دده چې يې پاسخ
ځای په ځی د خدای په حکم شود ناسخ

شیدو ګدا ۲۱

**پاسلل** **pāslol**: بنېګنه. منت اېښودل. لورېينه. پېرزوېينه. زباتل. سپړل. يار. خاطر

چې نمرې د پاسلوني خوري حميده!
په يوه پرهر زړدي بل پرهر د پاسه
د خود بين سړي له ډېرې پاسلوني
خوله په لوړه چينګه بنه ده. نه په سوال
چې د خضر پاسلونه ورسره وي
واقعي زهر و زقوم شي که حيوان خوري

دروم‌رجن ۱۳۵

**پاکوبي** **pākobi**: نڅا. ګډا

په هنر د پاکوبي چې آغاز ګيت کړ
سنګين زړه لکه دانه د کوزو چيت کړ

نيرنګ ۵۱

**پاند** **pānd**: پاڼ. کمر

دا ساعت يې کړمه ګونګ دور دوران
واقعي د پاند. د پړانګ تر منځ حيران

نيرنګ ۱۲۳

**پانيات** **pānyāt**: پند. عبرت

د يوه سړي پا نيات. د بل احتياط شي
و بنو ماوته ادب بې ادبانو

دروم‌رجن ۷۱

**پاوه جاوه** **pawa jawa**: (؟)

بل دې کاندي پاوې جاوې
يون په کبر لکه ناوې

سرغه ۲۰

**پټ څټ pəṭcəṭ** پټ پناه. الونیا

د حدیث له خولې بیانې
ستې څټي نه عیانې
شرعه ۴۱

محبت له خیل محبوبه
بټ څټ مه ساته مېزو به
شرعه ۱۰۵

**پای تافرق pæafarq** له پښو تر تالاکه. سر تر پایه

له تندیه. له شوخیه پای تا فرق
موذن و په اذان د انا الحق
نیرنګ ۱۲۶

**پایله paela** پایزېب. پسول. ګجرې

یا د بنګلو د پایلو شرنګهار دی
یا د عشق د لېونیو د زنځیر
دیوان ۱۰۲

**پټکاری paṭkaray** په پټه تښتېدونکی

هغه زړه راځخه مینې پټکاری کا
چې ساتلی و په خار. په قربان عقل
بمبې چاپ دیوان ۱۸۳

**پجه paja** د خاورینو لوښو پخولو ځای. د لوښووری. بار

چې پخپلې ناترسی فلك راشي
ولې کاني په پجه کې د شیشو
دزومرجن ۷۳

**پرتاب partab** غورځېدلی، ارتولی پاڅېدلی

را پرتاب د ناز له خو په په شتاب شو
د کرم په سمند سور لکه افتاب شو
شاه وګدا ۳۱

**پځن pəcən** (؟)

چا زنځور ته وې له څه نه؟
کړې دا اه فریاد. پځنه
شرعه ۲۱۴

**پچه پچه paca paca** (؟)

حـي پـه څرخ کـي بـه اوده لکـه غونچـه لاړ
لکـه ګل هسـي بـه خـور پچـه پچـه لاړ
شرنک ۵۱

**پرتو partaw** ړ ګه، پلوشه

پـه ډ ـود يـې د جمـال پـه هـر پرتـو
پروانـه پـه سـرومال وي ورتـه ډو
د ـر مخـي لـه پرتـو ذره وار
ولـوېده عزيـز لـه خيـه پـه تلـو
شرنک ۸۰، ۱۴۶

**پرخاش parxas** شخړه، ړه بداوی، خپګان

لـه خو با نو ـرد خای د پرخـاش نشـه
بـي ددم قـده نيولـو ـلاش نشـه
ښرنک ۲۵

**پرورده parwarda** پالل، روزلی

هـم پـری نـبرد وه د مينـي کرمـه ـرده
لکـه اوبـي پـرورده د ړه لـه درده
دي يـې ی بـه نـوش دوصـال ـرده
ـه ډرسـت عمـر نـبش د هجـر نـ خورده
شرنک ۸۹، ۱۲۹

**پريت prit** شرم، حيا، درناوی

ـ کـه د يوتـي پـوخ، بـل وريـت
ورتـه ونيسـي بـل پريـت
ـ ـه ۱۵۲

**پرېمشتل premәstәl** خای پر خای کېدل، مېشتېدل

د آرام پـه مېنـه پرېمشـت ـه ارا ـه
خـلاص لـه ډېره کشمکشـه د ـه ـه
ـ ـ ک ۵۲

پرمل premal حتی پر حتی کېدل. مېښتېدل. ټيکېدل

د صورت لـه کـوره کلیـه بـېګ نــه شــم
د معنــي پــه مېنــه پرمـلــم يګانــه شــم
نيرنګ ۲۱۰

پرين pren سل. منسور. چړه. نابيه

پــــه ايــــه کــــې د فتنـــــې
پــــر پــــې غــوبت لــــه ارتينــــې
ـــــرپرـــــې پخــــوا بنګــــــاره
ـــــــــې بـــــــايد اســـــــتخاره
دوارد حديه سرغه

پسته pəstana ستنېده. ستونېده

کــه هــر څو بــه يــې بــاران د اوښو وکــړ
دوه قدسـه يــې لـه تلـوپسـتنه نــه کــړ
نيرنګ ۱۳۲

پش pəs د ور غرغندې. د لمبو غرهار

محبــت کـــړ زمــا کــوز پــه هغــه اور کـــې
چــې يــې تبـنتــې اســمان خمکــه لــه پشــو
د رومرجن ۷۳

هغــه اور د کــوم مظلــوم پــه اوښکــو مــړ شــو
چـــې يـــې غروتــــه لـــړزېدل تـــل لـــه پشـــو
ديوان ۲۲۸

پشت پاى postepāe حېړه. دېښې شا

پشـت پـاى يـې کـړ پيغـور د ډبر وچــارو
د خپـــل دورد نـــګرو پــــه رخســــارو
نيرنګ ۱۵۹

پښونى psunay پخښو. ازاد. خوسې

زړ وازولــوېده حــيران پــه پښتو ســې پــرېوت
لــه مجــازه توبـــه ګـړ. پښونـــى کـــښېوت
نيرنګ ۶

**پل pəl** بخښلي. معاف

له وهلو دي پې پل کړ
یاد دې عجز، تقصیر خپل کړ
میلمه یوسي رزق خپل
خدای کوربه کړ په دا. پل
سرغه ۷۰ ۱۲۲

**پلشته palášta** کچنی. کنجره. بدګړه. بدلمنې ګسره

ګرچې کاندي پې په ډنسر
هوی کار دی د پلشتر
... ۱۷۲

**پلودل plodəl** کچ کول. اندازه کول

بوالهوس د محبت له حده ...
په ګمونو مخ د حسکې پلو ده سي
دروېزه ۱۲۴

**پلوه palwa** (...)

هره ورځ دې اوبه حلمه
تری پلوې غواړي په حلمه
سرغه ۱۶۸

**پند pand** لاروهل. منزل. یون. تلل. لار

که ولاړ چېرې په بند شي
نور نه دق له حوصله بند شي
سرغه

**پنهام penhām** پنهان. پټ. نیهاه

هسې شان به کړه ژړا استاد پنهام
لکه ژاړي پته خو له بوره بدنامه
میرنک ۱۱۳

**پوت puṭ** غم. خپګان

د اخلاص مزه به نه مومي له پوته
آه افسوس به وي وړپاتې له دې لوته
دروېزه ۱۳۹

پورژنل porzənol دروستل، ورچلا کول، پوري وهل

کفتکوی ازاد توتي په قفس بند کا
پوري ژني هر سري بلا ته ژبه
دیوان ۲۴۲

د دېرنو خير خواهه اوسه
د خواهان په نېکی پوسه
نه فقر او وسرد اوسه
د غم جزو خاطر پوسه
... دي مور او پلار پوسي
په کمال چاپلوسي
شرعه ۱۶۱

پول pol ... جوهر، اصل، زېور

چې ... دي پول، پاکدا مني
د ... عونه نه مني
که ... راځه کور اوسه
مور ... پلار په احسان پوسه
شرعه ۴۲

پوله pola ... پرده

... په زړه ادا کړم مړاوو سترګو
... برنه لګي د ستي ليندي تير
... هسي پوله کيف د عشق د ميو
... رکري د بندونو په ترشو
... مينه کي مي بخت هسي پوله شو
... د غرد نه ... کړم له بېخه لوري
د رومرجان ۳۰ ۷۲ ۱۲۱

پهه توب pahatob لټي، سستي، تمبلي

... حرام دی بل آشوب
راولی بل پهه توب
شرعه

پهې pahe: دسماله. پرتپ ایښې پټې.

د زړه زخـم يـې ترخولـــې سـرایت وکــړ
د ســكوت پــهې يــې دا كفــايت وكــړ
نيرنګ ۳۸

پیاري pyare: ګران. خوږ (هندي)

هغــه هســـې نــاندهی مــه کــوه پيـــاري
چــې دې فــرض پــه غــاړه وي. نفــل ګذاري
نيرنګ ۲۲۰

پیپړې pipre: چیچړې. د غوښې هغه برخه چې د خوراك نه وي

ده بــــه دې لــــره پيپـــړې
لــه قصابـــه غوښتـــې. وړی
شرعه ۱۸

پېټوری peturay: ووړ پېټی. پنډوکی

وایـه سپك ښه دی که دروند د سر پېټوری
فقـــيري درلـــره ښه ده امـــير مـــه شـــه
دروسرجان ۹۳

پېچونی pečunay: پټونی. پڅونی. د څوخای

هـر ساعت بـه يـې د ده د ليـدو رونيـو
د ليدو تـه بـه يې پـه تـل پيچونـی څونيـو
شاه وګدا ۱۲۰

پیچه peča: پلنيوی. د هندي پيچا (تعقيب). چم. چل. چاره

چې دا فتح د عزيز پـه بخت نصيب شوه
د ښادی پــېچــه هــېره د رقيــب شــوه
نيرنګ ۱۷۱

پېڅ peс: زغم. صبر. نيمګړتيا. عيب

کــه څوك نــه غــواړي خپــل پـــېڅ
نـــه دې وايـــې د بـــل هـــېڅ
وبــه نــه پـــېڅي هـــېڅ پـــېڅ
د قيــــامت د تلخـــــی هـــــېڅ
شرعه

د زیست مهماني هیڅ ده
د مال زیان، د قیامت پیڅ ده
بل حیران د خورو هیڅ دی
څوک نه لري کال پیڅ دی
ستا دې شانه کوزه، نه سه وهمه زړه هیڅ
نه خطره کړه بیرون د هجر پیڅ
شیدا وکدا ۱۴۰

پیځل pecəl زغمل، سهل، تحمل

د زړه مې سه پیڅه زهر سموم د جدايي
سوځي مه سرو یه په سموم د جدايي
شیدا وکدا ۳۲ ۱۰۶

زه چې خوشي يم په هجر کې د ترکو
سر پوړ عمل پیڅم بل عذاب سخت
چې دې بال پیڅي دا هسې نرم ګرم
نه په کومه حیا روغ ګرځي بېشرم
درومرجان ۱۸ ۱۳۹

پېر per دوره، چورلېدل، خل، وار، برید، ګوزار

نه دې خوري په بېرته پېر
د جهل خلق په څېر
شرعه ۲۰۹

پېرل perəl وربېت ورکول، ارزول، په بیه اخیستل

په دا حال ستاسې لیده
نه سېري، نه دي بایده
شرعه ۱۰۱

پېروتي perwəte جنګ بوټي، زېلانګ، پېروتی، خپلی وال ګلبوتی

په معلب لکه پېروتي درخارېږي
سپي معلبه زن حقه وېزارېږي
سرنګ ۱۹۴

**پېزل pezəl** پېزول. ګندل. پېوندول. کج کول

چې امید په فني د هر د بف کړي
د ام دې نشه به د پېزي کړي ويې نغږ ه
دروېرځ ۹۰

ته چې مينه په دې کوي دين غواړي
پېزوي عمر په نشه به د پېزنه
که مې خوره زېړ مرېز
د عسه به جامه سېز
په نيوبند وي يکسېز
پېزوي مهر د احسن ل
سرغه ۹۲

**پېزې peze** توري. تکي. هجا
لاورق د بنکلي مخ وربندي ژېب که
که پېزي د نوي خط په زېږد زور شي
له ساده مخه د صبر سبق چا زده
څو پېزي د خط په زېږ او په زور نه شي
دوړ دخيه دروېرځ

**پېزلی pezaləy** غونج. سره ورغلی. سره کلک شوی
که يې وي دوی څوك وژلی
هم دې نه وي بېروس پېزلی
سرغه ۱۲۵

**پېښه peṣa** پتی. دسماله. پهه
دا مې پرېوته پېښه د زړه له داغه
که د لاسه د لمر مخې مشال پرېووت
دروېرځ ۱۷

**پېک pek** پلې. پرېښو نلونکی. دسمانه. عادي وګړي
نپک عمل که. هغه نپك
چې خاک پك كه. نه بېك
سرغه ۷۱

سرې او شنې جامې تيارې د غونچې شوې
جلوه‌ګرې د چمن په بڅې شوې
شاه وګدا/۱۲۲

**پيه توب paya tab**: ورکاوی، سستي، لټي

يو حرام وي، بل اتوب
راولي بل پيه توب
د ګلاب د ګل په چوب
پاڅي کوهر پيه توب
شرعه/۱۸/ ۱۹

سرخوږ، غابښ خوږ، لېونتوب
پيه توب، کوهر، ډېر خوب
شرعه/۱۹/ ۲۱۳

# ت

**تا tā**: سر ښکاره کول او پنا کېدل

که مې زړه د عشق په تېغ سوری سوری شو
تریـــوه نـــه دې هـــم نـــه کـــړه راتـــه تـــا
دروم‌رجان ۶

**تاخت و باخت tāxtobāxt**: برید او پرشاتګ، خرپ و ترپ

رګ وراګ بـــې درنـــدې پـــه رګ و راګ کـــړ
تـاخت و بـاخت یې تخت و بخت د صبر ډاګ کـړ
نیرنګ ۵۲

**تاراج tārāj**: لوټ، چور، تالا

د زاهـــد پـــه صـــبر، زهـــد پـــه تـــاراج و
اچولـــی یـــې د نمـــر پـــه ســـرخراج و
نیرنګ ۶۳

**تازار tāzār**: جزا، سزا، د کړو غبرګون

چـــې دې درســـت دی بـــد ازار
د مـــېړې د مـــرګ تـــازار
شرعه ۱۷۶

**تاله tāla**:(؟)

کـه تالـه یـې لـه شـوخی پـه ګرمـی وړی
اوس یـــې زړه د ســـنګدلان پـــه نرمـــی وړی
نېرنګ ۱۸۲

**تأمل tāmol**: ځنډ، غور، سنجونه، سوچ، زغم

نــه لــه هغــه لوريــه عجــزو تــأمل
نــه لــه دې لوريــه زړه ســوی او تحمــل
نيرنګ/ ۱۷۰

**تانګ tāng**: د اس، خره او نورو څارويو له ګېډې تاوه شوې پټۍ، ګېډه بند

ستور او خـر يکـې ډوبـېږي کـه بـاور کـړې
چـې ورځي هغـه اوبـه د اوښ تـر تـانګه
درومرجان / ۹۸

**تاوکښ tāwkəs**: ربړ، کړاو، تنګسه

ورکـوي بـه بـې تـاوکښه
فـراخ رزق، زنـدګي خـوښه
د کـافرېې پـه دوغـښ کـې
ورښکـاره کـړ پـه تـاوکښ کـې
شرعه/۱۱۸ / ۲۰۴

**تبرا tābarā**: بېزاري، ښکاره کول، (له چانه) جلا کېدل، لاربېلول

تـبرا د عقـل، هـوش لـه چـون چـرا شـو
هغـه دم لکـه مجنـون سـر پـه صحـرا شـو
نيرنګ/۱۶۵

**تبل tabəl**: ټکورول، تپ ورکول، خوږ ځای په مالش تودول

کـه مـې يـار پـه يـوه زخـم ږدي بـل زخـم
پـه کـار نـه دي د طبيـب تبـل زمـا
ديوان/ ۱۷

**تخمـخ təxməx**: ارام، خوښ، پښېمانه، شـرمنده، خـړ، پيکـه، دانـه وانه، خوروور

قبلــه ګاه يــې د ســتا مــخ وي
ســتا پــه مـخ يــې زړه تخمــخ وي
شرعه / ۱۳۵

نه تنها مین شاهد په هغه مخ شو
دهغې هم زړه په مخ دده تخمخ شو
نیرنگ/۱۵۹

**ترار tarār**: ګوابنه، ترهونه، ډارونه، په ترازه کول

پرې دي نه کا ګوزارونه
زیات تر درېو ترارونه
شرعه / ۱۶۸

کړه د مچ له بونهاري که هوښیار یې
د زمري د تېهاري ترارو
درومرجان / ۸۶

**ترابنه trāṣa**: درز، چاود، وت

د افسوس شونډې یې غوځې کړې په غابنو
هم یې وشلېده رفو د زړه د ترابنو
نېرنګ / ۸۶

**ترخان tərxān**: له کلنګ او سور سات (مالیې) نه ببنل، "د تورې خان لنډیز بنکاري"

یادې ولولې ترخان
شکرانه ځه له قرآنه
شرعه

**ترکه torka**: ۱- بنکلې ګرانه، اشنا ۲- پوځې، لبنکري

بېرته وجار ایسته ترکو دُر د غورو
جوهر یانو ته ددې دُرو په زورو
نیرنګ/۱۱۱

**ترنځ trənǰ**: خوار، ډنګر، زیان

هم د میاشتې په سر منځ
مې باید له جماع ترنځ
د بخیل خوراك تول ترنځ دی
خور نده یې، په رنځ دی

لـــه هغـــه بـــه نـــور پـــه رنـــځ
نـــه شـــي نـــور د ســـترګو ترنـــځ
درېواړه ځایه شرعه

**ترنځل trancəl**: عیبجن ګڼل، زیانمن ګڼل

څو یـــې دا حـــرف وي ترمنـــځه
د هغـــو دوســـتي، وي ترنـــځه
شرعه/۱۱

**ترند tərənd**: ترهند، ترېدونکی، تور خوړونکی

جلوه ګرچې په چار سـوترند آهـو شـو
تمـام ښهـر پـه هـاهو وریـسې هوشـو
نیرنګ/۳۶

**ترو tro**: نو، ترې، د دې لپاره، تر هغه

چـې دې پوهـه پخپـل عیـب نـه رسـېږي
تـرو پـه عیـب بـه د بـل چـا پـه څه یـې پـوه
دیوان/۳۲۴

**ترېښ tres**: هغه ښکاري مرغه، چې کریز (ښکې غورځونه) یې نه وي کړي

پـــه خـــوراك بـــه یـــې ورپـــېښ
شـــي د رنـــګ رنـــګ عـــذاب تـــرېښ
شرعه / ۶۳

**تریلاک tarilāk**: تریناک یو ډول باز

نـو خطـان دي دلـبران تـر سـاده رویـو
چرتـه ښکـار د تریـلاك، چرتـه د بـوز
ادبي ستوري/۲۱۷

**تریناک tarinak**: ترند، بېدیانی، زوړ او ساتلی باز

نـــو خطـــان دي دلـــبران تـــر ســـاده رویـــو
چېرتـــه ښکـــار د تریـنـــاك، چېرتـــه د چـــوز
حمید/ ۱۶۶

تزند tazand: خور، کړاو، زحمت

اوبـــو واغوســـته قبـــا د یـــخ آیینـــه
بـــې د ســـتنې لـــه تزنـــده روغ مهینـــه
شاه وګدا / ۱۸۸

تزویر tazwir: دروه، ټګي، دورغ، چل

چې فلـک پکـې خلـل د تزویـر ګډ کـړ
وسندرو تـه ټول شـوي، پـه ویـر ګډ کـړ
نیرنګ/۶۱

تشنک tašnák: تنده، تنده غره، د اوبو لېوالتیا

پـه چارسو کـې یـې یـو چـاهِ کوثـر جـاه و
چې اوبـو تـه یـې تشنك د مـهرو مـاه و
نیرنګ/۱۵۴

تغافل tağafʊl: بې پروايي، ناجانېده، ناګارېده

تغـافل یـې د هـر سـوال پـه مـخ جـواب و
پـه دا بـاب کـې یـې غـرور ورتـه ثـواب و
نیرنګ/۱۵۵

تقریب taqrib: نژدېـت، نژدېوالی

پـه بانـه بانـه تـر هغـه، بیـاتر دې شـو
عـاقبت پـه څه تقریـب ورتـه نـژدې شـو
نیرنګ/۵

تک tak: تکړه، تیار

پـــه لـــږ تاومـــه شـــه نادانـــه
لکـــه ډول شـــور وتـــه تـــك
درومرجان / ۵۴

تکلم takllum: خبرې، وینا، ویېدل

عـاقبت یـې نمـك پـاش د تکلـم
ترحـم شـو جلـوه ګر لـه تبسـم
نیرنګ/۹۲

**تکی táƙay**: ټك تکړه، تیار، ماهر

هم خدای زر زر نیکي
په هرهر وبخښي تکي
شرعه / ۵۱

**ټګ وپوی tagopoy**: تله راتله، هڅه

لاړ شو کار د ګفتګوی له جستجوی
راغی حرف د جستجوی تر ټګ وپوی
نیرنګ/۳۳

**تنبېه tanbeh**: ګرمول، ملامتونه، رټنه، ویښونه، پوهونه

که په خواب کې د رښکاره دده شببه شي
وایه د یو ځنې خجل شیطان تنبېه شي
نیرنګ/۵۷

**توبری tubráy**: د غښي څوکه

هغو قبر لره یووړه بله شمع
چې توبری یې په زړه یووړ د هجران ډوب
دیوان/ ۵۳

**توتیا totyā**: رانجه

سیده نه وي واصل شوی، بیا جدا شي
توتیا یې د ژړا، برق وبرېښنا شي
نیرنګ/۱۲۱

**تورکښ turkəṣ**: د غشیو شخول، کڅوړه توبراك

هسې نه وایم تور کښ تر ملا مهرو کا
بلکې ځان سره یې مل تول د پېرو کا
نیرنګ/۱۲۶

**توروانجه torwānjə**: بادیان، کاړه

شي ویل ورته صاحبه
توروانجه په پښتو ژبه
توروانجه، شهد یو ځای کړه
لېوپري خپسر سر ترپای کړه

تـــور وانجـــه دی حضـــرت کنبلـــي
د هــــــر رنــــــــغ دارو ويلــــــي
درېواړه ځايه شرعه

**توروانځه torwanza**: توروانجه، باديان

علـــي هـــم بـــه تـــور وانـــځه
پـــه صحـــت، علـــت نمـــانځه
شرعه / ۲۶

**توزنه tozána**: نيمګړې (توزنه هيله)

ډېر مـــدت لـــه شـــرمه ننـــګه زهـــيرېږي
چـــې دې چارشـــي د دنيـــا تـــرچـــاتو زنـــه
ديوان/۳۱۸

**توسن tosan**: تېز اس

يکتـــازه لـــه ذوق و شـــوق پـــه توســـن ســـور لاړ
د مـــزل پـــه وچ وابنه لکـــــه بـــل اور لاړ
پـــه توســـن آهـــوزن بـــاندې ســـور راغـــی
د پرهـــېز پـــه وچ وابنه لکـــه اور راغـــی
نيرنګ/۱۵۱/۱۳۶

**توک tək**: توکی، ډول، څېل، دود

پـــه ګنـــاه دې پـــه چـــا څوك
نـــه وايـــي لعنـــت هـــېڅ تـــوك
شرعه

**تونبړی tonbṛəy**: کلی، ترازه، د ختيکي، بادرنګ، هندوانې

پــــه بني لاس کـــې يـــې لمـــړی وه
پـــه کيـــڼ لاس کـــې يـــې تونبـــړی وه
شرعه

**تيار مرګی tayārmargáy**: مرګ ته تيار، سرتېری، سربندوی

خاصـــه فـــوج ورســـره تيـــار مـــرګی
دم قـــدم لاژم ملـــزوم اورو لـــوګی
نيرنګ ۱۶۵

**تېزل tezəl** : پرې سورېدل، ځغلول

تـا چــې تــېز تــېزه ســمند د خودرایــی

مــا د ســتا د پــرېو تــو هالــه ارمــان خــوړ

دیوان/ ۱۱۰

**تېزندۍ tezandəy**: تېرندی، مرۍ ته اچول کېدونکی پړی، پانسي پړی

لــه هیبتــه شــوه د خپلــې لینــدۍ ژۍ

وګردن تـــه د نـــامردو تېزنـــدۍ

شاه و ګدا/ ۱۹۰

**تېزنه tezána**: تېزل، سپرلی، سپرېده

د دنیــا پــه مــال نــادان ســړی هــوس کــا

کــاندي طفــل د دورمـــو پـــه اس تېزنـــه

دیوان/ ۳۱۹

**تېغزونه teğzuna**: غورې، لاپې شاپې، باتې،

شــاړ شــلګ شــې لکــه غرونــه

کـــړي کافروتـــه تېغزونـــه

شرعه

**تیک tyák**: سینه وتی ولاړ، هغه ولاړ چې سینه او خېټه یې راوتې وي

ښه دی شـکم لــه زوو ډك

نــه لــه شـعره ډك و تیــك

شرعه / ۶۱

**تېکی tékay**: د تورې یا چړې پوښ، چړتون

برنـدې سـترګې یـې زمـا د خـوب وړې کـړې

خوب په تېکې کې د غـم تـېرې چـړې کـړې

نیرنګ/ ۶۲

# ټ

**ټانګ tāng**: وخت. ټاپی، موسم

چې بې ځایه ګفتګو کوي بې ټانګه
ورك شه ستار دوبدل دایرو ډانګه

درومرجان/۹۸

**ټپرېدل tapredəl**: زیاته پاملرنه، هوسېدل

پور چرګان که هم بانګ وایي
ولې سپین چرګ یې ټانګ وایي

شرعه/۱۷۸

په دنیا ټپرېده هیڅ پکار نه دي
څه ځملې له بوډۍ غاړه غړی
چې په غوږو کې یې بانګ
څښتن ووایي په ټانګ

درومرجان / ۱۳۶

**ټکی təkáy**: ټکی ټکی، ټکي لرونکی، خالدار

چې په طاق کړښو ټکی وي
خوږ به هغه ختیکی وي
چې یې نه وي دا دوه ځانګه
جنګ ته الوځي بې ټانګه

شرعه/۲۸/۲۰۱

**ټنډور tandor**: ډېری، کوټه، دلی

وي د جار په جار ټنډور
حق حرمت لکه د مور

شرعه

**توپلول toplawəl**: په توپونو کول، په توپونو راوستل

چې شاه سور په هغه تند ترک تازي
چست یې توپلوه په لوبو په بازي شه
شاه وګدا/۱۰۸

**تیټالي ṭiṭāli**: تیټال،خوشامندي، غوړه ماله

پښتانه چې عقل تولي
د پر ویل تیټالي بولي
شرعه

**تیکاو ṭikāw**: استوګنه، مېشتېدنه، ګوزاره، بسیا ېنه، ارام

په یوه ځای یې تیکاو هېچرې نه شي
لکه سیوری خواوشا ده دا دنیا
دیوان/۸

هېڅ تیکاو مې چرې نه شي
که وغوره ته اعتماد کړم
مې باید خبرې هسې
په تیکاوتیکاوکرښې
شرعه

# ج

جاړه ګیر jāṛagir: بلوسګر ،نیواکګر (غاصب)

لــــه ظالمــــه جــــاړه ګیــــره
د ګمراهــــه شــــښخه پــــیره
شرعه/ ۶۴

جانګدازي jāngodāzi: ارواسوزي، ځور، کړ اوګالنه

لــه دي لوریــــه اه فریــــاد جــــانګدازي
لــــه هغــــه لوریــــه کــــرم دلنــــوازي
نیرنګ/۱۳۱

جانی jāni: (؟)

چــې مــې کــړې وه پخــوا تــردې جــاني
پــه هغــې توبــې کــوم اوس پښېمــاني
نیرنګ/۲۸

جاه jāh: پت، شان، پوړی (مقام)

پــه کنعــان کــې د خوبــی یــو پادشــاه و
چې پــه مصر کــې د حســن یوسفِ جــاه و
نیرنګ/۶۳

جدر jadər: بنیاد، تل، پوېناه

چــې بــې نــه پــېژانــد هالــه د وصــل قــدر
بیه چې اوس پــه جدایــی شــوم هســې جــدر
نیرنګ/۹۱

**جري jaray**: لام، اېل، لاندې کړی، مغلوب

چـې د ترکـو د جمـال پـه جـرګو کـښېوزي
افلاتـون زمـا د عقـل کـاندي جـری
درومرجان ۲۱۲

**جړاو jaṛāw**: له غمیو ډك، سمبال، سینګار

چې تر ملایې په موتـو جړاو خنجـر کـړ
پرې یې غوڅ د صبورۍ باقي بنجـر کـړ
نیرنګ ۱۲۵

**جړۍ jaṛəy**: زهر مهره، تریاك

دا د عشـق لاعـلاج رنـځ دی نـه پوهـېږم
کـه بـې دمـه بـې جـړۍ منـګور دی دا
د زمـري د خولـې کـړي تېښتـه وزمـري تـه
د منـګور د غـاښ جـړۍ غـاښ د منـګور شـو
درومرجان ۶۹

**جزایل jazāyəl**: غربین، یو ډول پخوانی ټوپك

کـه هـرڅو یـې پـټوې لاڅرګنـد ېږي
جـزایل چـې واخلـې اورکلـه پـټېږي
نیرنګ ۷۷

**جك وهل jakwahəl**: چټي ګرځېده، بېکاره خبرې کول

چـې پـه شـوي کـار څه وایـې
پـوچ پـوچ وایـې وهـې جـك
درومرجان ۴۵

نـه هدهـد مـلاچـرګك
چـې دا کـار کـا،وهـي جـك
شرعه/۱۷۶

**جګرتوکی jegartókay**: ځیګر ټوټه

جـګر توکـی چـې دا هسـې جګرخـون دی
دا همـه واړه زمـا پـه ځیـګر خـون دی
شاه وکدا/۹۸

ځګې ځګې jəge jəge: ځار ځار، ځان ځان، زارې زارې

ځګې ځګې کـه بـدي نـه کـوې ښه کـړې
بـه روښان پـه دارنجـو زمـا لېمـه کـړې
شاه و ګدا/۱۵۴

جلبل jalbál: سوی، ستي، وريت پريت

ګل رخسـاروېې سـور اور پـه جلـوه بـل کـړ
دلالــه پــه څېرېــې زړه پکــې جلبــل کــړ
نيرنګ/۱۶۰

ځليا jalyā: جلبل، سوی لوی

نـاديده دې د جمـال پـه خيـال ګيـا شـوم
پـه ليـدو دې پروانـه پـه اور جليـا شـوم
نيرنګ/۴۴

جوار jawār: څنګ، ګاونډ، شاوخوا

جلوه ګر چې يې د مخ قـرب وجـوار شـو
پـه آمـد آمـد ګويـا درودېـوار شـو
نيرنګ/۴۲

جور jawər: خور، تېرى، زياتى

کـه هـر څو بـه يـې ځان ونغـښت غونچـه طـور
بيـا بـه ګل غونـدې پرېشـان کړبـاد د جـور
نيرنګ/۳۶

جوس jawás: غولی، انګړ، منډو

پـه هـوا يـې د هـوا هـوئ هـوس
آواره کـړ د هـر چـا د زړه جـوس
نيرنګ/۹

جوسه jusa: جثه، څېره، بدن، پژه

هغــه ووت لکــه روح لــه مدرســې
دې جوســه غونــدې روان شــو وريســې
نيرنګ/۵

**جولان jawlān**: اس ځغلونه، اسمنده، ځولنه

تــر جـــولان ختلـــې لاړ د عالیشـــان
شــر مــاوه پــه جلــوه شــان د کهکشــان
نیرنګ ۱۴۵

**جونګ jong**: د یادښت کتابچه، د پاڼو ټولګه

پــه دانــش کــې هــر یــو جونــګ د عقــل پنــې
پــه اثــر کــې شــخوند د هــر یــوه پــه خونــد
نیرنګ ۸۵

**جوهر jawhar**: آر، اصل، پر خپل اصل ولاړ

هــېڅ مــې نــه زده چــې جوهــرو، کــه عَــرَض و
جلــوه ګر لــه هغــې خولــې پــه څه غــرض و
نیرنګ/۴۹

**جه jə**: پر ځای ولاړ، اېل، سرغړاند څاروی، ځبلي

د مـــرده خدمـــت ولجـــه دی
نــېك بخــت زوی ورتــه جــه دی
چــېرې نــه چــې پــه ځای جــه
لــه ســـتی بـــایلي اولجــه
شرعه/۱۱۶

# چ

**چاړ čār**: کار، کړه

کـړه چـار مـې دعشـق سـمه کـړه تدبـیر کـج
برابـر مـې شـو پـه نخـښه دغـه تـیرکج
درومرجان/۲۰

**چاګلی čāglay**: پتك، پتکی، چاګل، بتکی، د اوبو سفري لوښی

شیشـــه، بیـــاتي، مســـواك
ســتن. ســپني، چــاګلی، تــرپــاك
شرعه/۸۴

**چدام čedām**: یو ډول زړه سکه، چې د هند پښتنو پاچایانو دود کړې وه، د تولې اتمه برخه.

کــه پــه مینــه کــې مــې ســر، د دلارام لاړ
د لکونــو پــه ســودا مــې یــو چــدام لاړ
دیوان/۱۰۸

**چرچاک čarčāk**: غم، خواشیني، اندېښنه

ځمکــې خــاورې پــه ســر لوســتې لــه پخســاکه
غــره ســینه پــه ســنګ وهلــه لــه چــرچاکــه
شاه و ګدا/۲۵

**چړاو اوتار čaṛāw otār**: څوړولوړ - لوړو څوړ، هسك و ټیټ

پـه هـر رنـګ چـې بـه مطـب غـږ اوه تـار
بــې تکلیفــه یــې نیــوه چــړاو او تــار
نیرنګ/۵۲

**چړه غوږ čaṛagwaẓ**: (؟)

شاه وې ولې هسې ناست خاموش بې غږ یې
غږدې نه خېژي هېچرې. چړه غوږ یې
شاه و ګدا ۵۸

**چشمه د حیوان čašma də haywan**: د حیات اوبو چینه، آب حیات، د ژوونچینه

هر مرغه یې په سبزه هسې شان کښېني
لکه خضر په چشمه د حیوان کښېني
نیرنګ/۹

**چل چلا čalčalā**: د تلوراتلو اواز، د تلو تیاری، لېږد، مزل

د خپل دم وچلېدوو ته غوږ نیسه
هر نفس د تلو اوازکاچل چلا
دیوان/۳

**چمبه čambá**: ۱- پنجه، څپېره ۲- د خولۍ ژۍ ۳- داریال

سرومال دې وي زما، ستا په چمبه
هسې اېښی لکه خس په سره لمبه
مینه نه اوسي د عقل په چمبه کې
پټ ساته نه شي بخرۍ په پومبه کې
نیرنګ/۷۷/۴۵

**چمن čamán**: سرکښ، سرغړاند، نامنونکی، شوخ (د اس ستاینوم)

ساده روی خط ته هوس له سادګۍ کړي
و چمن ته پرېښودنه شي د چمن لاس
دیوان/۱۲۱

له نا اهلو د زړه راز ساتلی بویه
و چمن ته پرېښوی نه شي چمن خلق
په راتله د خط چمن حسن ایمن شي
خدای دې نه کا په کفاروکې غریب څوک
دومرجان/۵۱/۵۴

که ستر کم کني دشمن شي
که کم سترکني چمن شي
که دوپا، چارپا چمن شي
هم به دا سره ایمن شي
دواړه خایه شرعه

خوري ځربې لقمې په نس له ناپوهیه
چمن اس کله ساته شي خوش علفه
ادبي ستوري/۲۱۹

**چنبل čanbál**: کومه وړه ناروغي ده

چنبل، لیچ، بل د غابښ درد
که هر څو کازهیر مرد
شرعه

**چوپړ čopaṛ**: یار، خاطر، خدمت

د دوستۍ په چوپړ
کنه خان و یارته پړ
شرعه/۹۸

**چور čur**: ۱ - لوټ، تالا ۲- تېره تیره، چې شپانه پرې د اړتیا پر وخت څاروی حلالوي، چوری

یوه شپه چې یې سیاهي د سترګو نُور وه
روشنایي د جهان وړې په چور وه
نیرنګ/۱۵

**چورنګ čawráng**: ۱- یو واریز د څاروي پښې پرېکونه ۲- تېغ، توره پرهر. تپ، توره چلونه ۳- پټې، سوری

لسم کال هسې اوبه ورکړې مشهورې
چې یې وواهه چورنګ د حسن تورې
نیرنګ/۱۲

**چوک čuk**: مطلوبه چاره، دخوښې چاره، څیز، پوټې، زیان

پوه یار ویل صاحبه چې دا څوك و
چې یې عشق د ستا په چوك دا هسې روك دی
شاه ګدا/۱۹۶

کـه امبـار ابـرو بـایلې کسـیره مومـې
پـه دا زیـان دې پروانـه کـېږي یـوچـوك
درومرجان/۵۳

**چوکس čukas**: چوخس، ویار، عیب، تاوان، زیان
پخپـل حفـظ کـې مـې ژغـوره
دهـر چوکـس لـه پېغـوره
شرعه/ ۲۳۰

**چول čol**: بېدیا، دښته، مېره، ډاګ
ځو مجنـون غونـدې وحشـي پـه طبـع نـه شـې
مـه شـه سـرد عاشـقۍ پـه چـول، دچـا
دیوان/ ۲۵

**چوهاړی čuharәy**: ناپاك، ناولی، مردار خور، پواړ، بنګي، تور، بدرنګ
هسـې چـارې پـه اشـرافـو کـاندي یـاره
چې یې نـه کړي چوهـاړی لـه شـرم وعـاره
نیرنګ/۱۸۸

**چېړ čeṛ**: زحمت، دښمني، تنګول، بلوسه، خوله وهل، جنجال
هـر سـاعت بـه یـې زاهـد د لاس لـه چـېړه
پـاس پـه مـخ بـاندې خـوړه تـوده څپـېړه
نېرنګ/ ۵۰

# ځ

**ځانکوټنه ǰānkotəna**: ځان حلالول، ځانوژنه

پــــه مــــانې د يــــار لپــــاره
ځانکوټنـــه کـــړه اختيــــاره
پــه دورمـــه د غــابښ ســکوېنه
پخپـــل لاس ده ځان کوټنـــه
دواړه خايه شرعه

**ځبله ǰabla**: پخپلو کې، يو له بله، يو تر بله، وبله

دواړو يــو ځبلــه د بــل پــه تســلې
پـه دارنـك قـول قسـم وکـړ پـه خولـې
نيرنگ/۱۷۳

**ځلبلاند ǰalbalānd**: پرېشان، نا ارام

چـــې ګدا د شـــاه لـــه لاســـه نګيـــن بيـــا مونـــد
ځلبلانـــد خـــاطر يـــې څه خـــو تســـکين بيـــاموند
شاه وګدا/۱۶۲

**ځله ǰəla**: : ۱- تلوسه، شوق مينه، لېوالتيا، هڅه ۲- وار، ځل ۳- تړپا

پــه عزيــز چــې د شــاهد د مينــې ځلــه
غلبــه شــوه نـــهايت پــه يــوه ځلـــه
چـې بېتابـه کــه عزيــز د وصــل ځلــې
اور يــې پــورې شــه د شـــرم پــه خځلــې
نېرنګ/۵۵/۱۸

**ځمبل jambəl**: ۱- بانه رېول ۲- بې پته کول

بې لـه ځان یـې نظـر نــه و پــه بـل چـا
نــه تـرې زړه مونـده د سـترګو پـه ځمبـل چـا
نیرنګ/۱۵۴

**ځنبل janbəl**: بانه رپونه، سترګه وهنه، بې پته کول

د همزولــو مــرګ اثــر دربـاندې نــه کـا
ســترګې نــه ځنبــې لــه کــك لكــه ملــخ
دیوان/۷۵

**ځمنځ jmanʒ**: ډول، توګه، دود، طرز

بــل دې کــا وینبتــه ږمنـــځ
چـې لیــده شــي پــه ښه ځمنــځ
شرعه/۱۰۹

# څ

**څرمه cárma**: ګوته، سبابه، شهادت ګوته

بیـــا پــه درې ګوتــو بــې رنــځه
کـــته، څرمـــه، بلـــه منـــځه
چـــې د ښې، د څرمـــې ګوتـــې
اغـــاز وکـــا بـــې کوتـــې
دواړه خايه شرعه

**څړه caṛa**: بې څوځاته، بې بچیو(بې بنیاده)، جـره، یـوازې، ګوښې، تشباني.

بیـــهوده مـــې ورتـــه زړه هوســـېده
عاشـــقي ده څړه تـــول او پخســـېده
دیوان/۲۶۸

**څکول ckawəl**: راکښل، پر ځمکه راکښل، ساه راکښل، سهل

نـــه شـــم تـــور د جدايـــې بـــار څکولـــی
غونـــدی نـــه شـــي دوینتـــه پـــه تـــارڅلولی
شاه وګدا/۱۶۴

**څلول cławəl**: څلل، اوبدل، ګنډل

نـــه شـــم تـــور د جدايـــې بـــار څکولـــی
غونـــدی نـــه شـــي د وینتـــه پـــه تـــار څلولـــی
شاه اوګدا/۱۶۴

کــه پــه لــوړه مــې څکــوي کــه پــه ژوره
ورکـــړو مـــا د یـــار پـــه لاس مـــهار د روح
درومرجان/۲۲

**ثوبه coba**: غرض، موخه، هیله، مینه،

هــم لــه کــوره ســره لوبــه
دغــه لوبــه ده بــې ثوبــه
ورســـره دې کـــابې ثوبـــه
لـــه ګناهـــه پاکـــه لوبـــه

دواړه خایه شرعه

**ثورنګ cawarng**: ۱- چورنګ، لتاړ، پړسېدلی، په وینو لړلی، ژوبل، ۲- تپ، پرهر، پړسېدلی

راشـــه کښېنـــه تـــه قصـــه د پتنـــګ واوره
هنګهـــار د خپـــل شمشـــېر د ثورنـــګ واوره
پـه څه شـان بـه یـې شـهید د مـخ پـه تـېغ کـا
پـه څه رنـګ بـه یـې ثورنـګ ګوره بـې درېغ کـا

نیرنګ/۱۰۴/۵۴

**ثوهړی cuharay**: چواړی، ثوهاړ

ړونــد، بصــیر، فقــیر بنه بولــي
ثوهــړی حــلال خــور تولــي

شرعه/۵۸

# ح

**حسب الامر hasbolamr**: له کار سره سم، له پرېکړې سره سم

حســب الامـر خلـق واړه شــه صــف صــف
هــم پــتې کـــړې رخنـــی پـــه هــر طــرف
شاه وګدا ۱۲۴

**حک hak**: ۱ - سولول، توږل ۲- کيندل، کنل

برطـرف يـې لـه خـاطره شـبهه شــك شـو
لـه تختـې يـې د شـعور حرفونـه حـك شـو
نيرنګ/۲۰۹

**حيف hayf**: ۱ - افسوس، ارمان، دریغه ۲- تېری، زياتی

وې (يـې) څه عجـب ملامـې معتــبر دی
حيــف دا چـــې لـــه باطنـــه بـــې خـــبردی
نيرنګ/۴

**حيله hilá**: چل، چم، دروه

پـه هــزار حيلــې د شــرعې موافــق کــړې
تــر قــدم پــورې حــلال دا منــافق کــړې
نيرنګ/۵۷

# خ

**خاشا xɑ̄šā**: (؟)

د ســـواره د خـــوب خاشـــا
لـــګوي د مرکـــب شـــا
شرعه/۸۶

**خاشه xāša**: خلی، ډکی، خځلی

غــم غلــط د صيــد و ســير پــه تماشــه کــا
پــه هــوس لــرې لــه زړه د غــم خاشــه کــا
وې يـې کـه تـير انـدازي پـه هغـه رنـګ دی
وې يـې خـو د لـه شـسته لاړ لکـه خدنـګ دی
نيرنګ/۱۳۵، ۱۳۹

**خاښه xāṣa**: خيرې

وړي خـــاښه لـــه مشـــانې
هـــم ګورمونـــه لـــه ايينـــې
شرعه/۲۷

**خپسر xəpsar**: ځان، خپل ځان، خپلسر

څو پـوره د چـا غـرض پـه خپســرنه کـړې
ســتا بـه کلـه شـي پـوره پـه بـل غـرض
درومرجان/۴۴

کـــه دې ځار کـــړم ځان جـــهان واړه ترســـره
پـــه دا خپســـر عـــذر نـــه لـــرم د لـــبره
نيرنګ ۷۲

**خپه xapá**: د زندان کوټنې، کوټه کولپي

د بندیـانو تـورې شـپې هـزار خپـې
مخـی نـه ګنم هـېچـرې د نـن شـپې
شاه وګدا/۶۷

**ختې xəte** : جامې، کالي، لته.

د شـهید پـه شـانې خـدای زمـا کفـن کـړه
دا پـه خـاورو د نېسـتی خـیرنې ختـې
درومرجان/۱۲۵

**خټول xaṭol**: په ختو لړلی، ناپاك، ګډوډ

مؤمنـان دې خپلـه ټولـه
ګنې صافـه، نـه خټولـه
نـن سـاعت کـه پـه سبب د بُعـد عـهد
خټول شوې دي په خوند کې دغـه شـهد
شاه و ګدا/۳۸

د انصـاف فکـر دې ټول کـا
پـرې دې بـل صـافې خـټول کـا
شرعه/۹۱

**خدنګ xadang**: غشی، تیر

لـه هغـو سترګو څوك څرنـګه ژونـدی ځي
چې خدنـګ یـې د نظـر زخـم کـاري کـا
دیوان/۳۹

**خرات xarāt**: (؟)

د ظـالم د زړه پـه شـان تـور انـدرون و
د مظلـوم د حـال پـه څېر خـرات بـېرون و
نیرنګ/۱۷۲

**خراج xarāj**: باج، سورسات، مالیه

د زاهـد پـه صـبر، زهـد بـه تـاراج و
اچولـی یـې د لمـر پـه سـر خـراج و
نیرنګ/۶۳

**خرام xerām**: نخره، خوښي، ناز

هــر انــدام د ګل انــدام پخپــل خــرام
مــا تــاوه د هــر مُحــرِم د حــج احــرام
نیرنګ/۴۸

**خِرَدرباى xeradrūbāy**: عقل وړونکی، عقل تښتوونکی، بوړنوونکی

راکــړه مــی خــر دربــای ډکــه کونــډی
ګونـدې شـم لـه مکـره خـلاص ددې بـوډی
نیرنګ/۱۸۹

**خرڅوړی xarcoṛay**: زاړه او ربمن کالي، بېکاره جامې

چې پوشاك کـا، ژمی اوړی یو خر څوړی
وي بـه سـبزه لکـه سـروه، ژمــی اوړی
درومرجان/۱۰۹

کـه سـاړه وي کـه غارمـه پـه ژمــي اوړي
تـېری مـه غـړوه پـښه تـر خپـل خـرڅوړي
نېرنګ/۲۲۰

**خرمن xermán**: درمند

یــا نســیم شــوم والوتــم پــه چمــن ســتا
یــا شــوم بـرق، و لـګېدم پـه خرمـن ســتا
نیرنګ/۱۴۴

**خریز xriz**: کلك اغزی، غټ اغزی، سیخ ډوني منډه

دغــه پســه د ســواری پــه وخــت عزیــز
خــو د کــرده پېیلــی زړه د غــم پــه خریــز
نیرنګ/۱۲۸

**خسمانه xasmāna**: غم خوړنه، درملنه

نـه بــه وي ورســره هســې مســلمان څوك
چې یې واخلي خسمانه د آب و نـان څوك
درومرجان/۱۳۸

خضوع xozoؤ: عاجزي، کمیني

جیم، حې، خې ورته سجده کړه د خضوع
هسې پاتې شوې خواشینې په رکوع
نیرنګ/۱۱۴

خم xam: کوږ

چې څې ډېر د عشق تر بار لاندې زېر زېر شو
ښتم قامت د الف، خم د دال په څېر شو
(۵۰) ا

خمسور xamsor: آزاد، جوړه، (جفت)

پرېښتې د سپي له بویه بېرته ګرځي
باري تا رقیب له ځان سره خمسور کا
پرېښتې موافقت له دیوه نه کا
د رقیب سره حبیب په څه خمسور شو
دیوان/۲۹۱/۳۲

خوانل xwāṇəl: خوړل، یوازې امر بنه لري

مور و پلار سره بنه کانۍ
ددوی غم په احسان خوانۍ
شرعه/۶۰

خیر xir: ۱ - تېښک، اړم، کلك ۲- سپین سترګی، مړسترګی

څه بلا لره مې یاد وکړ تا خیر نن
څه آفت لره فلك شوراته خیر نن
نیرنګ/۱۶۴

# د

**داب و اداب dāb- o- adāb**: خوی بوی، دود، ډول ډال

هر ګیاه یې پېچوتاب لري د زلفو
تمامي داب و اداب لري د زلفو
نیرنګ/۹

**داد dād**: ۱ - عدل، انصاف، نیاو ۲- ورکړه، ښښنه

نه یکلخته په چا ظلم کا، نه داد کا
کله هغه، کله دا پخپل معتاد کا
راشه راوله زما تللې ښادي
زړمې ورسه په دادو په دادي
نیرنګ/ ۹۲/۷۰

**دادي dādi**: فریادي، داد غوارې، نیاو غوارې

فریادي غوندې (یې) داب و ادب پرېښو
د دادي په څېر یې لاس په لمن کېښو
راشه راوله زما تللې ښادي
زړمې ورسه په دادوي
نیرنګ/۹۲/۵۳

**دآله dāla**: دلته، دا

په سلام عمر رض د اله
اهل ضوء و باله
شرعه/ ۷۰

**دب دب dabdab**: د بد به، شان، پرتم

په ادب یې دد بدب خسته عزیز
ورولاړ شومات په زړه د مینې خریز
نیرنګ/۴۸

**د پ dap**: ډپ، ډب، بند، پوري د څه ځیز د لوېدو اواز

په ښادی زما دوصل، کواکبو
په وهلو ګوتې وایستې له دپه
درومرجان/۷۷

**دد dad**: ځیروونکی حیوان

ترهېده یې د یو وددله تاکسی
شرمېده یې درنده له تا ترسی
نیرنګ ۳۴

**در dar**: د درلل ښېږ همېشنی مهال (لاړه، لرلو، درلوده)

ځوګدا په لاس کې د انګین خاتم در
ګویا جام یې د جمشېد، خاتم د جم در
شاه وګدا/۱۶۲

**دربښو darbṣo**: درزي، ګنډونکی

غم کړزړه د حمید هسې ځیري ویري
چې حیران یې په ګنډل شو د ربښو
دیوان/۲۲۶

**درختن daraxtán**: پلوي، همدمي، ګډ ژوند، نېکي

چې د لې دې کېږي ناسته له بدانو
هوري مه غواړه له نېکو درختن
درومرجان/۸۹

**درسته drastá**: وسله، تیرکښ، د غشو ایښودو ځرمینه کڅوړه، چې شاته اچول کېږي

بې عمله علمیت څه په کار نه دی
لکه ښځه چې تر ملا وتړي درسته
درومرجان/۱۰۴

**درغـل darğal**: ۱- کـوټه، کلـپ، ټګ، دروهـي، دروهجـن ۲- خـوار، ځپلی ۳- کلابند

چـې درغــل شــي د چمــن پچــه پچــه
ډکــه خولــه لــه وینــو وخـاندي غونچــه
نیرنګ/۲۱

**درګوره dargora**: پروا، یادونه

لـــه دوســتیه بـــه یـــې څه راوشـــي ګوره
چـې مـې نـه کـا پـه نېکـۍ بـدۍ درګوره
مـــا مضـــۍ بـــلا جفـــا واړه درګوره
پـس لـه دې مـې پـه هجـران مـه وژنـه ګوره
نېرنـــګ/۶۸،۶۵

پـــوچ ګویـــي مـــې وکـــړه درګوره
کـــه یـــې خـــدای کـــاندي درګوره
پـــه اودس قـــهر در ګور شـــي
مـــړ پـــه دا اوبـــو دا اورشـــي
شرعه/۹۷/۷۰

**درګه dərga**: د شړو ځنګل، د کړکونچه، دورمه

هــر پلــوچــې بــه یــې واړولــې ســترګې
اور بـه بـل شـو د پـر هـېز پـه لونـدې درګې
ســیلابونه یــې د اوښو څه لــه ســترګو
لــګاوه یــې اور اوبــو د تــن پــه درګو
نیرنګ/۵۹،۳۷

**درم darəm**: د هندی د هرم، دین، ایمان، مذهب

هسـې شـان یې شـو دوکـان د حسـن ګرم
چې یې مـات کـړ د هـر چـا د شـرم درم
هـېڅ دې نـه ګـڼـده لـه خدایـه حیـا شـرم
چې دې مـات کـړ پـه هـوس د تقـوی درم
نیرنګ/۳۰،۲۵

درم darəm: حیا، شرم

په پــرده کــې د حیــا پــه هــزار درم
لــري مــا ســره صحبــت د مینــې ګرم
نېرنګ/ ۱۸۰

نــه مــې شــرم شــته،نــه درم پــه حســاب کــې
چــې لــه یــار ســره لاړنــه شــوم پــه رکــاب کــې
درومرجان/ ۱۴۰

هنګامــه بویــه د زړه پــه مینــه ګرمــه
خدای دې نه کاندي سړی بې خپله درمه
(۰)

دروړ darwaẓ: د مښتې ځاروی، نښه کړی ځاروی، د نذر ځاروی

د اغیــارو لــه مجلســه لاس پــه غــوړ
شــماره ځان دیــار د مینــې پــه دروړ
نیرنګ/۶۶

دروه droh: ټګي، چل ول، کړلتوب

چــې تــر زنــې لانــدې خــط راوړي انبــوه
یــار لــه یــاره ســره نــه کــړي هســې دروه
درومرجان/۸۶

چــې ســپوږمۍ شــي پــه عقــرب کــې
شــي ســفر پــه دروه ودرب کــې
کــاندي ځان پــه صحبــت پــوه
د عــالم پــه اخــلاص، دروه
د حدیــث پــه معنــا پــوه
د انکــاح نــه بولــي دروه
ومــې ژغــوره زمــا ربــه
د شــیطان لــه دروه دربــه
شرعه/۲۳۰/۹۱/۸۳

دروهل drohəl: ټګل، غولول، تېرایستل

پــه وعــده یــې د وفــا پــه جفــا پــښن کــړم
ودروهلــم جــو فــروش ګنــدم نمــای دوســت
درومرجان/۱۸

**دروهي drohi**: ټګ، ټګمار، چلي

د دې وخت دوستان دروهي دي
تر سبزې لاندې کوهي دي
شرعه ۱۷۲

هېڅوک مه وايه عزيز ته دا خبر
چې په دروه دړخخه لاړ دروهي دلبر
خو د به حال صاحب د حال په رموز پوه کا
يو په يو به يې خبردار د يار په دروه کا
نېرنګ ۱۹۷

**دروهېدل drohedә́l**: غولېدل، تيروتل

څه غلط دي پوهېدلي دروهېدلي
دا غره تللي په اصل په نسب
درومرجان ۱۱

دا نسته باندې دروهېږي
يو پرې مري، بل نه ګروهېږي
شرعه

**دسماله dosmāla**: پټی، پهې

وې يې شکر دی قادره بر کماله
په کرم سره د خوږ وزړو دسماله
نيرنګ ۷۰

**دښن daṣәn**: دښمن، ميرځمن

د دښنه په نيکخواهی غلط مه شه
له دې دينه مې بايد هراس د کفر
درومرجان/۲۹

**دښنه daṣnә**: دښمنان

ګاه به مست بېهوشه لاړ په هسې رنګ
چې دښنو به يې واهه په سينه سنګ
نيرنګ ۲۲

دغه بازي dağabāzi: ټګي. دروه. چلول

یو په یو رنګ غولوه حیله سازي کړه
بل په بل رنګې افسون دغه بازي کړه
نیرنګ ۱۰۷

دف daf: داریال. چمبه. داریا

هر یوه له جدایي نه د خوشرنګ
مخ وسرواهه په ځای د دف و چنګ
نیرنګ ۶۹

دلق dalq: کند. ددرویشانو جامه

دریابندګي د خدای نه ده د خلق ده
مشرکي لاندې ددې اسلام تر دلق ده
نیرنګ ۲۱۸

دم dam ژوند. ساه خان. د چیلم کش. افسون. منتر. زور خواک.
زغم. مینه. تیکور. براس

هسې غشي یې په زړه وخور رسا
چې د وعظ دم یې نه واهه پارسا
نیرنګ ۲۷

دوخار ducōr: خرکند. ښکاره

پس له دې ګفتګوی با لفوه چاري
له عزیزه شوي بالفعل را دوخاري
نیرنګ ۷۱

دورته dorta: هله. هغه وخت. هلته. په هغه ځای کې

مسافر چې راشي کور ته
په خندا وي عالم دور ته
ننوځي چې څوك کور ته
بسم الله دي ووایي دورته
چې څه وست له ښاره کور ته
مومن راوړي نور دی دور ته
شرعه ۵۳ ۱۴۸ ۱۵۳

**دوک dok**: (؟)

پـوه يـار ويـل صـاحب تـه چـې دا څوك و
چې يې عشق دا ستا پـه چـوك دا هسـې دوك و
شاه و گدا/۱۹۶

**دوکمن dukmán**: دردېدلی. خوږمن. دردمن

وې يـې نـور پـه سـترگو وينـې ای دوکمنـه
وې يـې کـړه لـه خپلـو سـترگو دا پوښتنـه
نیرنگ/۱۳۸

**دومی dumay**: والگی، زکام

بيا چې وخت د بهار تېر شه ژمی راغـی
د سـپرلي پـه ښو گلونـو دومـی راغـی
شاه وگدا/۱۸۸

**دوهـه doha**: دوهڅی دونهـی ملنگانـو ناستځی د ملنگانـو د پره او اوربلولو ځای

ای د عشـق پـه ډېـوو سـوېو پتنگانـو
پـه دوهـه د مينـې ناسـتو ملنگانـو
د ښايست شـهرت يـې لاړ ښهـر پـه ښهـر
ددوهـی پـه څېريـې وسـو تمام د هـر
نیرنگ ۱۲/۹۶

**دهر dahar**: زمانه، نړۍ، وخت، پېړۍ، هېر

د ښايسـت شـهرت يـې لاړ ښهـر پـه ښهـر
ددوهـی پـه څېر يـې وسـو تمـام د هـر
نیرنگ ۱۲۱

**دې دې dede**: ده ده. وهه وهه (په کړنې ژبه)

پـه دا هسـې طمطـراق راغـی نـژدې
د قـاضي پـه بـزن.بـزن پـه دې دې
نیرنگ ۴۸

**دېس des**: هېواد، وطن، کلی

وبـه نـه وځو لـه خپـل ديسـه بـل خواتـه
خـلاص لـه ويـاړه دا غيـار د مقصـود خواتـه

داد کــــوم د پـــس وديـــــار رســــــم و رواج دی
چې خــوبس کـړی بې خــودی د اســـتا مـــزاج دی
نیرنګ ۱۷۳ ۲۰۴

چــــې دينـــــدارو دی ديـــــن ژغـــــړی
دی يـــــــــې دبس اواره کـــــــــړی
پـــــــه جـــــارو دې د انصـــــــاف
دبس. د يـــار لـــري خپـــــل صـــاف
شرعه ۸۲ ۱۸۶

# ډ

**ډاهي dāhi**: اتل، قهرمان

مـــګر وي دې کلـــك ســـپاهي
پــه اس ســـپور دجنـــګ ډاهـــي
شرعه

**ډبر dabár**: پوپناه، غوښن، تیار

غریبـي پـه غریـب کُشـو اترنـه کـا
څو یې خدای پخپله توره ډبر نه کا
نیرنګ ۳۵

**ډچکه dačká**: ډچه، ډیچه، ترپکی، د مستی ټوپونه

نـه پـه ډچکـه، نـه پـه څغاسـته
مـرده راسـت وي کـه ناراسـت
شرعه ۲۲۴

**ډډوزه dadúza**: ۱- غړوسکه، خوړسکه، تریخ لوګی، لوګی، د ټوپك د ډزلو خړه ۲ - پوپنا

ګدای څه و چــې د مینــی لــه رمـــوزه
ســرترپایــه ســره لمبــه و، شــنه ډډوزه
نیرنګ ۶۳

**ډمامه damāma**: نغاره، تمبل، ډنډوره اوازه، انګازه (د شهرت)

بــې خــبر یــې وکــړ تــاخت پــه ډمامــه
نــروښځې یــې پــه بنــد بوتلــې همــه
نیرنګ ۱۶۷

**ډنډه daṇḍa**: د پټي غټه پوله، داو بوبند

مینــه ماتــه کــړي توبــه دســلو کــالو
د ســېلاب لــه مخــه وبــهېږي ډنــډه
درومرجان ۸۴

**ډونډ ḍunḍ**: وران، ویجاړ، لتاړ، کنډر، کنډواله

پــه امیــد د وصــل پــایم وچ پــه شــونډو
څو بــه اوســم دهجــران پــه مېنــو ډونــډو
شاه اوګدا

# ذ

**ذات العماد zatolςemād**: د ستنې خاوند

چې جنبش پـه یې پـه مزکـه څه خویـاد کـه
بـوړ بوکـې بـه یې اسـمان ذات العمـاد کـه
شاه ګدا ۱۲۳

**ذهب zahāb**: سره زر، طلا

چـې مـې ولیـد دا کتـاب سـیم و ذهـب
مشــتمل پــر مســئلو د خپــل مذهــب
نیرنګ ۱

# ر

**راګ rāg**: سندره، نغمه، مزې چړچې، وزم، تال، د زړې موسیقۍ له اوه ګونو دودونو څنې یو

د خپــل علــم پــه تعلیــم یــې تربیــت کــړ
د عصمت رګ یې په راګ د معصیت کــړ
څو څو رنــګه رګ و راګ پــه عمــل راوړي
یــو صــورت پــه څو معنــو محتمــل راوړي
نیرنګ ۱۳ ۱۹

**رام rām**: اېل، رووږدی

بــس کــه مــه کــوه‌ناســارې راتــه رام شــه
خــبر دار زمــا د مینــې پــه احــرام شــه
نیرنګ ۵۶

**رانجا rānjā**: پرهیرنو مې یوې نجلۍ مین پنجابی

پــه ســهي مینــې د هــیرو د رانجــا ږو
پــه راســتۍ د وامــق او د عــذرا ږو
نیرنګ ۹۹

**راهي rāhi**: استولي، روان، لېږلی

چــې شــاهد تــه یــو پختــه قــاصد راهــي کــړه
ورپــه لاس د خپــل تقصــیر عــذر خواهــي کــړه
نیرنګ ۸۹

رتې rate: (؟)

چې مې پان غوندې لړمون د وېښو ډك شو
ښكل مې هاله كړي د ښكلو شونډې رتې
دروموجان ۱۲۵

رتی ratəy: ۱- د يوې هندي ونې تخم. چې د تول لپاره كارول كېږي ۲-د اوربشې هومره تول ۳- د وينې څاڅكى ۴- ډېر لږ څيز

تريووې رتى حيا خار او قربان شه
د شوخى، د بې شرمى من من خلق
دروموجان ۵۱

رخنه raxná: كنډو، درغول

حسب الامر خلق واړه شه صف صف
هم يې پټې كړې رخنې په هر طرف
شاه و گدا ۱۲۴

رسن rasán: رسى، بياسته

هسې شان چست و چالاك په توسن سور شو
گويا لعل د برېښنا په رسن سور شو
نيرنگ ۱۲۶

رشت rašt: يبلې يا ابلې پښې (؟)

بستر بويه دخوب درشت
كه په دين كې غواړې رشت
چې پاڅې پښې رشتې
و مېلمه تېه فرشتې
هم په نام د فرشتې
وركا دا نورو رشتې
شرعه ۱۲۲ ۴۶ ۷۴

رفو rofo: پيوند، گنډل، گرمل، گربل

چې يې دم وربانډې ډېر د مهر پوكړ
بې رحمى شلولى زخم يې رفو كړ
نيرنگ ۶۷

**رکاب rekāb**: پراس د پښو ایښودو اوسپنیزې کړۍ

چې قیامت یې په رکاب کې د قامت شو
له راتلو یې خکه شور د قیامت شو
نیرنګ/۴۷

**رکوبی rakobay**: (؟)

د دوستۍ کله رشتې دي رکوبی ستا
که ته سپی د یار د در یې، زه یم سپی ستا
شاه وګدا/۹۱

**رم ram**: وېره، ترهه، تښته

چې عزیز د دلارام له رمه رام شو
په هوس سره یې رام له رمه رام شو
نیرنګ/۷۰

**رموز romuz**: د رمز (راز) جمع

خام خمار یې د تقوی له سره کوز شو
شور و شر چې یې کاوه، پوه په رموز شو
نیرنګ/۲۷

**رمیده ramidá**: تربدلی، تور خوړلی، توربدلی

رمیده له ودانۍ سر په صحرا
ترانه کړه په دارنګ بې چون چرا
نیرنګ/۱۵۰

**رېش reš**: ژوبل، زخمي

یو له څلې د سبق سبقت اندېش
بل له شولو د رخصت په خاطر رېش
نیرنګ/۱۰۷

**رېښته reṣta** : یېلې (لوښې) پښې- پښې پېل

چې یا څې پښې رېښتې
مېلمنو ته فرېښتې
شرعه

**ربمن reman**: رام، غلی، اہل. د چمن (باغي) بڼه

که دوپا . چار پاچمن شي
به په دا سره ربمن شي
شرعه

**ربو rew**: خُوږ، ګنګستیا

چې پر وچولي څوك لېو كا
ورك له سره درد ، ربوكا
شرعه ۲۵

**روک rok**: په روکه. لاس پر لاس. نقد (د پور بڼه)

هم دي نه لوړي هېڅوك
په ژوندون د هېچا روك
د كوږمې بنايست دی روك
نه ستا يې هېچاته څوك
دواړه ځايه شرعه

# ز

**زاله zālā**: زړه، عمر خوړلې

چې يې غوښته بيايې مونده هسې زالـه
کبرجنــــه، حيلـــه ګره، کـــهن ســـاله
نيرنګ/۱۸۱

**زاه zāh**: بچی، د زاهوزاد، ځوځات، زهمن

پــلار شــريك د زاه پــه ښو دی
لــه ګناهـــه يـــې بخـــښو دی
هــېڅ دې فــرق نــه کــا عيــان
د خپـــل زاه، يتيـــم ترميـــان
دواړه خايه شرعه

**زايه zāyá**: زهير، خورېدلی، کړېدلی

چـــې يـــې زوی د همســـايه
پـــه ليـــده نـــه شـــي زايـــه
شرعه/ ۱۳۰

**زدوول zdowəl**: مېښل، سولول، ورو ورو کمول

زرپـه زر بـه دې دېوال د عمر پر بوځي
چې يې زدولـي د مظلـوم د اوښوزيـم
مـا ويـل چې بـه يـې وزدولـی نـه شـې
تـا چـې مچـو ښولـی اب نـان خـوړ
د پـــردو وينـــو زدوول ګوره اســـان دي
څکـه اچـوي پـه قـې کـې مينـا وينـې
ديوان/ ۱۱۰ ۱۹۴ ۳۸۸

زرغام zerğam: ضرغام، داروونکی زمری، زړور

چې محکم پښت وزر غام شي
بالادست د شي په قيام شي
شرعه ۲۱

زړېدل zredəl: غسل کېدل، سهېدل

دغه زور به دې زر پده ترکومه پورې
چې پوازې دې په ځان تمام جهان خوړ
دومرجان ۳۳

زره ستود zrəstáwa: کانګې، ګرځون، اولتې

که يې وختي زره ستوې
هم د پوزې وينې، زوې
شرعه ۱۵۲

زغوتی zağotáy: زغمونکی، سهاند، د زغم خاوند

هم دې وي په شان د غر
هم زغوتی لکه نفر
شرعه ۲۰۰

زلال zolāl: رڼې اوبه

نه ناکس د چا په اوبو انفعال کا
نه په بت باندې اشرآب زلال کا
نيرنګ ۲۵

زمول zmol: مړاوی، غړند، کمزوری

لکه غم د هجر زمول زما خوانی کړه
خدای دې هسې ځواني نه که زمول د چا
دومرجان ۹

زنخ zanax: زنه

له اوبويې دم ختليو موندده دم
شرمنده شي زنخ د صبحدم
نيرنګ ۱۵۴

**زنهار zenhār**: ۱- خبر اوسه، پام کوه، هېڅکله، هډو، ببخی. کړ ـ ب.
ژغورندوی

د نېزو په ځای یې ګوتې د زنهار
اخرونیوې په عجز انکسار
نیرنګ ۱۷۱

**زورمنډی zormandáy**: تېری، زیاتی، ازمېینه

ګرد غبار دې تړې څنډې
پرې دې نه کا زور منډې
شرعه ۱۷۵

**زوم zwam**: کم، کمی

دا چې ته ازمېیې زورن په کمزوري
دغه زور به شي سبا درځنې زوم
دورمرجان ۶۰

**زوولی zowəlay**: زېږیدلی

چې زوولی ځنې دی بدرمنیرو
هغه کس دعا لمګیر بادشاه امیرو
نیرنګ ۱۸

**زُهره zohara**: مابنام سترګه. ناهید (ستوری)

د خامې د مداری له ازبرایه
د زُهرې ورته زَهره چاوده له ورایه
نیرنګ ۱۶

**زهن zahən**: بچي. خوخات. د زاه جمع. زهمن. زامن

پس له مرګه یې زهنو
د اصلاح کړه په منو
شرعه

**زېرمول zermawəl**: زېرمه کول. غونډول. راټولول

چې طلب درځخه نس خوارږه تاروه کا
زېرموې سبا حلوا. بېګا بنورږا
دورمرجان ۷

ژیرمه **zerma** ذخیره، تدبیر، چاره، سپارښته، پروا

ای مـدام د نـس پـه ژیرمـه مبتـلا
خان تـه ولـې ویـښوې ویـده بـلا

دروموجان ۱

عـاقبت یـې دا قصـه تـر قـاضي لاړه
ژیرمـه زخمـه د حـال بویـه مـاضي لاړه

نیرنگ ۲۹

ږ

ږو (؟) تسمې وی دی، د لوړې او سرکنډ په دود کاريږي

د غـایب شـاهد پـه حسـن لایـزال ږو
د ښتینـي محبـت پـه بند انـزال ږو

نیرنگ ۹۷

# ژ

ژبون žbun: ژبه

دی یـــې وتـــړي هـــم ژبـــون
چـــې لیـــده نـــه شـــي ژبـــون
شرعه ۲۱۹

ژتې žəte: د ګوتو کوتی، د نوك او وری ترمنځ تشیا

بـــل دی کـــب د ګوتـــو ګوتـــې
بنـــد پـــه بنـــد پـــاکیزه ژتـــې
شرعه ۴۴

ژغری žğərəy: ساتنه، ژغورنه، پروا

بـــل د ســـپي ســـاتل پـــه کـــور کـــې
نـــاروا دي پـــه انـــځور کـــې
مـــګر کـــاندي پـــری ژغـــری
څوك د مـــــال، د ککـــــری
دوارِه خایه شرعه

ژغړل žğərəl: ژغورل، ساتل

چـــې دینـــداره دی دیـــن ژغـــړی
دې یـــــــې د بس اواره کـــــــړی
شرعه۸۲

یـــا مـــې دا ګړی لـــه خپلـــه لاســـه مـــړ کـــړه
یـــا زمـــا د بیلتانـــه لـــه غمـــه ژغـــړ کـــړه
شاه وګدا ۱۵۸

**ژغړی žğəṛay**: ژغورلی

ډېر مې خان دی په دې صبر ستړی کړی
بارې نه شم ستا له مخه نظر ژغړی
دروموجان ۱۱۰

**ژنل žnəl**: وروستل. ورجلا کول. پورې وهل

گفتگوی آزاد توتي په قفس بند کا
پورې ژني هر سړی بلا ته ژبه
دیوان ۲۴۲

**ژواک žwāk**: ژوند

حمید وژغوري خان څرنگ له خوبانو
چې یې خدای په دوی موقوف کړ مرگ او ژواك
دروموجان ۵۳

**ژوی žəway**: ژوندی. ساکښ. حیوان

ورکوي دې په دا ژوی
بازکي د تمري. نوی
شرعه

چې جفا په وفا نیسي د خوبانو
د عاشق په څېر نېك نیت نشته بل ژوی
دروموجان ۱۱۱

# س

**ساد sād**: د غله ضد. نه غل

په منزل به یې سبا ګوره څوك ملـه وي
نه پوهېږم چې به ساد وي. که به غله وي
درومرجان ۱۳۹

**ساق sāq**: پړکی. ورون. پنډۍ

چې بیان به یې واصف د ساق اشراق کړ
کافوري شمعې به اور. بل په تاراق کړ
نیرنګ ۱۵۹

**سانګ sāng**: بې فکره. ناتللې خبره

څه به ستا په وراشه نه خاندي وګړي
اېوته ګفتګو ی کم نه دی تر سانګه
درومرجان ۹۸

**سامري sāmeri**: په سیامره سیمې پورې اړوند. هغه کوډګر. چې د موسی (ع) پروخت یې خلك د خوسي نمانځنې ته بلل

په زخسار بله دیوه یو دانه سوزه
په کاته د سامري سحر آموزه
نیرنګ ۹۱

**ساهه sāhə**: سهل. زغمل

کشمکش د یوه زوړنه شو ساهه چې
په دوه زوړه باندې څنګه ژوند کلـه واهه چې
نیرنګ ۴۰

**سپړ spər**: سپړلی، ښکاره، څرګند

چـا بـه ووې ردو بـد ورتـه پـه سپړ سپړ
چـا بـه وواهـه پـه سوك چـا پـه لـوړ
شیدا ۱۰۱

**سپړی spəray**: سپړ، ښکاره، څرګند

خای پـه خای مـې وېـرې کـړی
پـه قـرآن وصیـت سـپړی
پـه خـوراك جـبرایيل سـپړی
دی حضـرت تـه امـر کـړی
د وارډخیه شرعه

شـرموې مـې شـوخې سـترګې تـر تـا پـورې
چـې و مـخ تـه دې نظـر کـړم سـپړی سـپړی
دروموجن ۳۶۵

لـه دغـه هیبتـه زړه راڅخـه رغـړي
بـاره مـه وايـه ځيـل تلـه وماتـه سـپړي
دیوان ۳۵۷

چـې وي خای ښځې تـود کـړی
نـر دې نـه کنبني پـرې سـپړی
شرعه ۱۵۹

هغه وخت و، هغـې غبرګې ظـاهر سپړی
د بـادام دوه مغـزه مثـال راوړی
نیرنګ ۱۰۲

**سپند sepand**: سپیلني

موم لـه اوره سره څه کـا، یـخ لـه نمـره
څه شـوخي د سـپند رسـي لـه مجمـره
نیرنګ ۲۴

**سپېڅل specəl**: پاکول

پـه دارنـګ غنـم سـپېڅل
نـه دي ښه، لـري سـپېڅل
شرعه

**ستانګه stānga:** ګوزن. فلج

ګفتګو يې د مطول (الف بې) خوان ته
څرګند پړې جمجمه په ستره ستانګه
دروموجان ۹۸

**سجن sa jan:** مرکه لېږونکي. کوژده کوونکي. محبوب

دا سنت دي په سجن
چې په بندورولي جن
ګوري خان ته غوښتي جن
له کفارو څو سجن
نه دي غواړي يو سجن
بل سجن غوښتلي جن
درېوارد خايه شرعه

**سخ sax:** ۱ - بخت،نيکمرغي ۲- خوښي
اينه چې به يې مخ ته ښکلی مخ و
توتا طور به يې هاله ګويا په سخ و
نيرنګ ۷۹

**سفله sefla:** ټيټ. بې ارزښته. پاسو
ليده نه شي په دادور مدور
ستا په طور اشرآف کُش. سفله پرور
نيرنګ ۱۶۳

**سکر sokər:** بېسدي. نشه. مستي
ستادميني په اثبات دی هسې محوه
چې يې نه څوك سکر پېژني. نه محوه
نيرنګ ۱۸۴

---

مطول دعربي د بيان او معاني يو ګران کتاب دی. چې په بيت کې راغلی محمجه اپلتو ويلو. اوبې مات خبرو ته وايي: د بيت لنډيز دادی. چې ناپوهي پر الف ب خبرا ته د مطول خبرې داسي بې مات دي. لکه د ګوزن وهلی کوګوي اوبې مات خبرې

ست وپټ satopat (؟)

چې یې ولګېدې ستړګې په نګار ځپل
ست و پټ یې فراموش کړ د افکار ځپل
نیرنګ ۱۹۵

ستپیل sateal: ستول. ست کول. د خوراك یا څښاك بلنه

چې به وستپیه شاه چاته ساغر
د ګدا په سر به پرېووت د غم غر
شاه وګدا ۱۳۳

سراغ sorag: څرك. پته. درك

د ستوري به یې د حسن له سراغه
په روش به سروې سروکېښ له باغه
نیرنګ ۲۵

سرایت serayat: ۱- شپې کرځنه ۲- اغېز خپرېدل ۴- له ناروغۍ خبرېدنه

د زړه زخم یې تر خولې سرایت وکړ
لاعلاج یې په فریاد شکایت وکړ
نیرنګ ۱۹۹

سخرې غوټې sxəregutı: سختې غوټې

سخرې غوټې مې د غم دي زړه ته پروتې
کاشکې خدای کا را پېدا کړه کشای دوست
دیوان ۶۱

سرچونګ sarčwang: سرخوړند . سرکښته. درناوی

مېلمنو ته دي سر چونګ
چوپه خوله نه کښېنې کونګ
شرعه ۱۲۵

سر دور sardor: برخه. نصیب. په ناوې پسې پر دریمه ورځ د پلار له کوره وږل کېدونکې سوغات

مسافر پلې دی که سور وي
د خدای حفظ یې سردوردي
شرعه ۸۲۷

**سر شته saresta**: سمبالښت، چاره، موخه

لــه دیوانــو ســره څه د فرشــتې
چې بـه زیسـت کـوي ددوی پـه سرشـتې
نیرنګ ۴۵

**سرکول sarkawəl**: پوره کول، سرته رسول، ترسره کول

څو یـــې تـــوان وي دی یـــې هـــم
ســـر کـــوي حـــاجت مـــهم
شرعه ۹۲

**سرګه sərga**: (؟)

نــه دي بــد، ســاتل د چــرګو
د لنـــګون دپـــاره ســـرګو
نــه دې بیــا یــې پــردی ورګه
خان ســره چــې لــري ســرګه
شرعه ۳۰ ۸۸

**سروپ srup**: بیخي، ګر د سرد، هډو

معلـم کـه یـې پـه قطـع افلاطـون وي
په اول سـبق بـه سـروپ لکـه مجنـون وي
نیرنګ ۱۰۴

**سروپای saropay**: پوره جامې، لاندې باندې جامې، خلات، خلعت

سـروپـای یې منـور پـه شسـت وشـوی کـړ
تمـام تـن یې د نـافې پـه دود خوشـبوی کـړ
نیرنګ ۱۷۵

**سروېږدی sarweẓday**: بالښت

څو یې نه دی ستا مړوند سروېږدی کړی
خدا دې نه کا د حمید سر په ګور هومره
دومرجان ۸۶

**سرویل sroel**: زیښل، کنبنبکل، کلك مړل

څو بــه تــه لکــه پرکــار چورلــې رابــاندې
څو بــه زه لکــه نقطــه ســرویه شــم لانــدې
نیرنګ ۵۳

ډېر مې وېښڅه رسوم د جدايي
نور مې هه سرو يه په سوم د جدايي
شاه و ګدا ۳۲

سره لرې saralǝre: سره راوستونکې تبه

ستا د مهر له سره ديه نږدې لرې
د بېړدې زړه محض د مرګ له سره لرې
نيرنګ ۲۰۴

سکښتل skaṣtǝl (؟)

هم د خداى ازادي سکښتې
په ازار کې د دوى نغښتې
شرعه ۱۶۱

سکښتې skǝstay: جوخت. برابر. سم

شعر څه دى؟ وينا سکښتې
نې بې نې. زښتې (يې) زښتې
هم د خداى ازاروي سکښتې
په ازار کې د دوى نغښتې
شرعه ۶۱ ۱۶۱

سکنجه skanja: شکنجه. پنجه. منګول

د سرو سترګو پتنګانو په پنجه ړو
د خونخوار و ادم خورو په سکنجه ړو
نيرنګ ۹۹

سکوى skoy: سکوېل. سکنل. بياتي کول. پربکول. توږل. مښل

هم دې نه سکويي داسې
يال. وربل بې عذره کس
په دا څو څېزه دې نه کا
غابې سکوېنه. که څوك بنه کا
په دورمه د غاښ سکوېنه
پخپل لاس د خان کوتنه
دېوان خانه شرعه

سکه **ska**: نو، ځکه

سکه د علم په طلب مکتب نشین شي
باطن هم لکه ظاهر هسې مهین شي
نیرنګ ۱۰۵

سلا **salā**: صلاح، مشوره، نغوته

ناګهان په مدرسه د ملا راغی
په لباس کې د بلا په سلا راغی
دا سلا به که صلاح فکر سلیم
چې پنجاب دی انتخاب د هفت اقلیم
نیرنګ ۹۳۴

سم **som**: سوم (د اس او نورو څارویو) بښګری

ځو به ته د مهر نازله تبسمه
غرو سم لاندې کوې تر خپله سمه
نیرنګ ۵۳

سماع **samāʕ**: ۱- اورېده ۲- سندرې، سرود

دې پیالې لره کباب، رقص، سماع دی
د قیامت کښېناسته محض اختراع دی
نیرنګ ۵۰

سمټ **smat**: پخ، بشپړ، نا لاس وهلی، سمت، سلامت

یا یې یوسه کور ته سمټه
له هلکو د دوی پټه
شرعه ۱۳۰

سمندر **samandár**: ۱- د اور چینجی، اور مرغ ۲- لوی دریاب

الهی د محبت سوز وګداز را
په دا اور کې د سهي سمندر سازرا
دیوان ۱

اتشي جامې اغوستې لمبه طور
په تلاش د سمندر د حال دغور
نیرنګ ۵۵

**سند sand**: یوښت. یووالی. اتفاق. ګډون

دم قدم د یوه سن په یوه سندکې
پېچېده لکه بوسه په شکر خندکې
تیرنګ ۱۵

**سنګ پارس sangeparəs**: یو کاڼی یا تیږه، چې وېل کېږي او سپنه وریږي په مښلو سره زرکېږي

یوه ورځ خواجه احرار سنګ پارس
د کرم په ښیښنه زر کړه د د مس
تیرنګ ۳

**سنګړه sangara**: کاڼي. تیږه

اوس حمید کوي نعرې د یار له غمه
چې یې ولي دا رقیب په لور سنګړه
دیوان ۲۸۵

**سو su**: لور خوا. پلو. طرف

کرم اخترډی نوی شوی په هو سونن
چې کوي مبارکی سره هر سونن
تیرنګ ۱۵۰

**سوبه soba**: فتح. بری. نصرت

بس کړه مه کوه. په نور وګړي لوبه
مبارا دې شه زما د قتل سوبه
تیرنګ ۵۴

**سوده suda**: سولولی. سولېدلی

چې مینه به یې کړ غاړي ته نظر
په سجده به یې سوده کړ ورته سر
تیرنګ ۱۵۷

**سور مرګ surmarg**: د سره کفنه مرګ. د یل له لاسه وژله. شهید بدل

قناعت د ژوندون برګ دی
د حاجت غوښته سور مرګ دی
سرغند ۱۱۷

سوروکی swarukay: د سور یا سپور وړ نوم (مصغر)
د اډنـــډوکی واقعـــي د طوفـــان مـــوج کـــ
دا ســـوروکی گرد د غبـــار د عظیـــم فـــوج کـــ
نیرنگ ۱۳۹

سولل Suləl: هڅه کول. لېوالتیا
"اذاجـــا" دی هـــم لولـــي
کـــه د بنو پـــه ثـــواب ســـولي
هـــم دې دادعـــا ولولـــي
پـــه طعـــام دې هلـــه ســـولي
شرعه ۳۷ ۱۰۰

سوه swə: سول. سوځېدل
لکـــه اور هســـې راوگرځېده پـــس
بیـــایې مـــځ ونیـــو پـــه سـوه د بـــاقی خـــس
نیرنگ ۴۰

سهل sahəl: زغمل
چې پخپـل صورت اغزی سهلی نـه شي
بـــل تـــه ولـــې رســـوې د تـــېغ الـــم
دروومرجان ۶۰

سهل sahəl: اسان
ولـــې واړه بېگانـــه وو. نـــه وواهـــل
مشکل کار يې په لاس واخیست. اسان سهل
نیرنگ ۸۵

سهم sahəm: وېره. ډار. بوږن
لال يـې شـرم کالـه شـوندو پـه یمـن کـې
گل يـې سـهم خـوري لـه مخـه پـه چمـن کـې
نیرنگ ۲۰

سهېدل sahedəl: د سهل (زغمل) مجهول بڼه
سـهیدای پـه یـوه ځای نـه شـم لـه غمـه
دا چـې زد کلـه دروڼ. کلـه بـیرون شـم
دروومرجان ۶۶

سهی sahi: سهونکی. سهند. زغمونکی. ارام

الـــــهي د محبـــــت ســـــوز وګدا زرا
پــه دا اور کـــې د ســهی ســمندر ســاز را

دیوان ۱

سیادت sayadat: مشري، حکومت او واکمني چلول. پاچایي

نجـــابت یـــې خانـــه زاد و د ګوهـــر
ســـیادت یـــې اعتمـــاد و داخـــتر

نیرنګ ۱۰

سیده sida: برابر. سم. نیغ. روغ

سیده سترګې نه وي سپېږدې په ګلزار. ما
بیـــا خوږلـــی یکـــی زخـم وي د خـــار. مـــا

نیرنګ ۶۱

سېر ser: موړ

د بازارلـــه ســـیره ســـېر لکـــه آهـــو شـــو
د صحـرا د کلـو ګشـت تـه پـه هـاهو شـو

نیرنګ ۱۴۹

سیر sayr: سیل. ننداره. ګرځېدا

د بـــازارل ســـیره ســـېر لکـــه آهـــو شـــو
د صحـرا د کلـو ګشـت تـه پـه هـاهو شـو

نیرنګ ۱۴۹

سهیل sohail: سویل. یوځلند ستوری

ورحـاضر پـه هســې شـان پـه هســې نـاز شـو
چــې ســـهیل اشـــنا ګداز. اشـــنا نـــواز شـــو

نیرنګ ۶۶

# ش

شاطر sāter: داس په مخکې خغلېدونکی، نوکر

یوټولی شاطر بچه یې په جلب کې
لکه ستوری د سپوږمۍ په جلب کې
نیرنګ ۱۲۷

شاغی səgay: ښه اغلل، ښه ایسېدل، په زړه پورې

تر اول صحابي شاغی
بیا به بېرته پېشکش راغی
وایي څو یاران چې ښاغله
د یونس په زیارت راغله
د مالك په خدمت راغی
په طلب د علم شاغی
دریواړه خابه شرعه

شبخون sabxun: برید، یرغل، چپاو

د چراغ لوګی یې زلفې سنبل ګون و
چې یې کړی په نګهت د ګل شبخون و
نیرنګ ۱۵ ۹۹

شست sast: موخه، نښه، د لینده ما رواو درزیانو په ګوته کړې ګوته یاګوتمه

چې شاهد د محتسب په شکست پوه شو
په رساګوزار د حسن په شست پوه شو
نیرنګ ۲۸ ۱۳۹

چې حمید غوندې وحشي یې رساوویشت
خوښ خوښ کېږي پخپل شست باندې په خای دوست
دیوان ۶۱

شحنه sahna: شانه، ږمنځ

پیچ و تاب په شان د زلفو شه شحنه
هم او ده شوه د ګدا د بخت فتنه
د ه و ګ. ۱۸۰

سرر sarar: سپرغي، بخري، سپېنکی

زړه اور واخست د شوندېو له شرره
دا چې شنه لوخړه ځي د ميم له سره
نيرنگ/۱۱۱

شررپاش sararpas: سپرغی شيندی، دردوونکی

له دې لوريه فريادونه شرر پاش
له هغه لوريه سلام و، په خوش باش
نيرنگ/۱۳۱

شلک salág: شاړ، شډل، ډېر کلك

شاړ شلک شي لکه غزونه
کړي کافرو ته تېغزونه
شرعه

شوله sola: غم، وير، درد، خوږ (نس خوږ) کولنج

چې خوږي يې همه عمر يې شولې
عرش يې خاوري د قدم کړي اخر بنکولي
په ګدا به شولې بوختي بيا د غم شوي
سر شتې به د ژوندون ځني برهم شوي
هېرولم به يې زه دا هسې ولې
په دا غم کې مبتلا د غم په شولې
شاه و ګدا/۲۷/۶۲/۱۳۷

قصاب وي نور به پېشوله
څه ورنه کړم په زړه، شوله
شرعه

شومل sumel: څنبل، کوتل، نغرل

چې لاړ ونيسي احمقو بېرته درومئ
دم قدم د شرمندګی زهر شومئ
نيرنگ ۸۶

**شوخ šux**: علت، سبب. کبل. لامل

چـې تـه شـوې زمـا لـه شـوخه
د دې زيـان د غشـي موخـه
چـې د دې خـيرې لـه شـوخه
فرشـتې تښتـې بـې روخـه
ځوك دا لوسـت بولـي بـې روخـه
د سـماع د تـرك لـه شـوخه

شرعه ۳۷ ۴۴ ۶۵

**شناور šanāwar**: لامبوزن

هـر قـدم د خـدای پـه لارې دلاورتـه
پخپـل اب کـې لکـه لعـل شـناورته

نیرنگ ۳۶

**شیتی šetəy**: شتی، غشی

وې يـې لـوړې. د انامـه د هغـه کـس ده
چې خوړلې يـې شـيتې سـتا د هـوس ده

نیرنگ ۱۸۱

**شین šayn**: ناز. تګ

زه پوهېږم ځرباوه شم پـه داشـين
لکـه پسـه حلالولـو لـره عيـن

نیرنگ ۷۳

**شېرافګن šerafgan**: زمری پرځوونکی. زړور. تکړه. توږخن. مېړه

پـه شـوخی د شـېخی ښهـر شـکن
پـه کمندکـې د کـاکلو شـېر افـګن

نیرنگ ۴۸

**شېوه šewa**: چل. چم. دود. لاره. نازنخرې

پـه شـېوه د نـادر حسـن ښايـېرې
پـه جلـوه د صـبر. زهـد لـوټېرې

نیرنگ ۵۳

# ښ

ښکوم skwəm: ورمندنه (پند)

سـنت هـم د ده مریـــږي پــه اوومــــه
پــــه اول اســــلام چــــې ښکومـــــه
شرعه ۱۴۴

ښکوېل skoel: ګښويل. ګښېل. ښکل. ليکل
پــرې بـــه وښکــوي دومــــره تـــورې
لکــــه شـــکې، پــــانې، تــــورې
شرعه ۴۳

ښند sənd: برابر. مناسب. سم
چــې مـــې تـــن نیســـي پـــه ښنـــد
واخلــــې بـــــېچوکــــه فرزنــــد
شرعه ۱۴۰

ښکی skay: کوږ شوی. کښته شوی. وربدلی. لاندې
چـــې د دې ابـــر بـــاران ور بـــاندې ښکـــی شـــي
بـــې ثمـــره ســـروې خان ثمـــر تـــه ســـاز کـــړي
دروملرجان ۱۱۴

ښونګې sungən: نېک فال. ښه شګون یا شګوم. استخاره
امیـــــد وار پـــــه دا ښوګڼ
شـــي دورکـــې پـــه ســـونګڼ
شرعه ۲۰۹

ښېوه sewa: ناز. کرشمه
چــې دننــه کــ چمــن تــه پــه ښېوه پــښه
په خدمت یې سروی ودرې پــه یــوه پښه
شرنګ ۲۱

# ص

صحو sahwa په سد کېدل. هوښیارېدل

ستـ دمیني پـه اثبـت دي هسـې محـوه
چې یې نه څوك سكرپېژني. نـه صحـوه
نیرنگ ۱۸۴

صفوت safowat غوره والی. غوره توپاکوالی

اییـنـــه غونـــدې صفــ پـــه صفـــوت
لکـــه زړه هســـې گوښه گوښه خلـــوت
نیرنگ ۷۴

صوری suri جولیز، شکلي

صـوري حسـن یـې زیبـا پـه معنـوی شـو
پـه خطـاب د ذالنوریـــنِ مثنـــوی شـــو
نیرنگ ۱۱۶

صید sayd ښکار، ښکار کېدونکی څیز

پـری یـې نـه ښو هلتـه صیـد پـه هیـڅ لـوري
بـې یـوی سیاه هوسـیه د خپـــل ســوري
نیرنگ ۱۵۲

صُم بُکم somon bokmon گونك وكوڼ

پـــه آرزو یـــې د لیدویـــم صـــم بکـــم
پـه دا بـاب کـه عنـایت شـي راتـه حکـم
نیرنگ ۱۹۲

# ض

ضرغام dergām زمری

لـــه کمـــال وفـایـــی هغـــه ضرغـــام
خـو د جـواب بـا صـــواب شـود پیغـــام
نیرنگ ۱۴۵

# ط

طرب tarab تازګي، خوښي، مستي

که په کور و نازنین، که په مکتب کې
وبه ګل غوړېدي په عیش و په طرب کې
نیرنګ ۱۱۷

طریقت tariqat لار، رو، چاره، تدبیر

چې یې پو وربندي دم طریقت کړ
له مجازه یې مشغول په حقیقت کړ
نیرنګ ۶

طعن taʕn پېغور

مرصع تېغ یې تر ملا په هسې شان کړ
چې یې طعن د فلک په کهکشان کړ
نیرنګ ۱۲۴

طلسم telesm کاغذ یا اوسپني ټوټه، چې فالګر پرې لیکل کوي، هغه بوټی چې خیالونه او تصورات انځوروي، جادو، کوډې

په دا ګنج بندي پروت مه وای دا طلسم
بارې موندنه شي دا قسم په بل قسم
نیرنګ ۵۸

طلوع toloʕ لمر خرك، لمر ځیره

لکه لمر هسې چې مخ په طلوع راغی
د جهان د پرېشانی په شروع راغی
نیرنګ ۱۲

طمطراق **tomtoraq**: پرتم، شان، دبدبه، ځانښودانه

چې ظاهر پکې د حسن طمطراق شي
هغه ځای د صبر، زهد طاقت طاق شي
نیرنګ ۲۴

طور **tur**: د شام هغه مشهور غر، چې خدای تعالیٰ پکې موسی (ع) ته خپله تجلي وښوده

هسې شان بې جلوه ګر د حسن نور شو
چې ښکاره په قصر بام طیور د طور شو
نیرنګ ۴۲

طوق **tawq**: غاړه کۍ، له مرۍ نه تاوېږي، د مړیښوب پټی، اوړی، یاکړی

نهایت چې غلبه وربانديې شوق شو
محبت یې د ناموس د غاړې طوق شو
نیرنګ/۵

طی **tay**: ۱- تاوول نغښتل، مزل سرته رسول ل ۲- یوه عربي قبیله

هېڅ مې نه زده څه تاثیر لري دامې
چې همرنګ مې هم رونق کړ د زړه طی
نیرنګ/۴۶

طیران **tayrān**: الوت، الوتل

له اوبو به شو د عقل، جریان پاتې
له مرغانو به ددین. شو طیران پاتې
نیرنګ/۵۲

طیور **tour**: الوتونکي، مرغان. د طیر (مرغه) جمع

هسې شان یې جلوه ګر د حسن نور شو
چې ښکاره په قصر بام طیور د طور شو
نیرنګ/۴۲

# ع

عاصی ʕasi: گناهگار، گرم

چې جدايي د الف له خواقامت شو
د عاصي په څېر ولاړ دی تر قيامت شو
نیرنګ/۱۱۴

عداوت ʕadāwat: دښمني، میرڅي

پښتنو په هغه کلي وکړتاخت
په سبب د قديمي عداوت باخت
نیرنګ/۱۶۱

عذرا ʕozrā: د عربو یوه مشهوره معشوقه

په سهي مينې د هيرو درانجا يو
په راستې د وامق و د عذرا يو
نیرنګ/۱۹

عرض ʕaraz: ۱- تول، مال ځيز، ناروغي، پناه کېدنه ۲- پر بل ځيزو لاړ ځيز ۳- لښکر

هيڅ مې نه زده چې جوهرو، که عرض و
جلوه گر له هغې خولې په څه غرض و
نیرنګ/۴۹

عسس ʕasas: د عاس (گزمه، څوکی) جمع

که د خسو وي، رقيب د سترګو خس وي
پناه وشه چې حاکم وي يا عسس وي
شاه و گدا/۸۹

**عشوه ʂešwa**: ناز، ادا، نخره

پـه دوستـی کې دروه و درب، عشـوه، فـریب
لکـه کفـر پـه اسـلام کـې وي بـدزیب
نیرنګ/۲۰۴

**عصمت ʂesmát**: پت، سپینلمني، پاکلمني

واخسـت بحر د عصمت هسـې شـورش
چـې مونـده نـه شـي ګودر د سـفارش
نیرنګ/۳۳

**عقد ʂaqd**: تړون

کـه قبولـه یـې پـه عقـد د فرزنـد کـړې
پـه دا داد بـه مې خورسـند او سر بلند کـړې
نیرنګ/۱۸۲

**عنان ʂenān**: واګې، ملونې

وې یـې چاسـره همدمـه هـم عنـان دی
وې یـې هغـه چې یـې نـوم آه و فغـان دی
نیرنګ/۱۳۹

# غ

**غاړه gāra**: والگی، زکام

دم پــــه دم یـــې بـــوی کـــوي
غـــاړه، دومـــــي ورك کـــوي
شرعه

**غزال gazal**: د هوسۍ بچی، کبلی

مــاتول یــې پــه غمــزه غــزال دســترګو
بــې تکلیفــه شنه مــزري ددیــن پــه درګو
نیرنگ ۱۵۶

**غش gaś**: ۱ - بې سدي، کمزوري، عیب، دوکه ۲- ګډول، خیانت

راشــه راکــړه هغــه مــی ساقي مهوشــه
چــې یــې تــل راتــه تونـدي ستایې بې غشــه
نیرنگ ۱۴

**غضبان gadbān**: غضب، قهر، پرغز

نــهایت د جنــګ پــه وخــت نامـــهربان
لــه غیرتــه پخپــل ځان بــاندې غضبــان
نیرنگ ۱۶۹

**غلنی galanay**: له کاره پټېدونکی، ټگمار، غلاجن

نقــد و جنــس یـــې (همــه) واړه غلنـــي
پــه مجمـــردده د مـــخ کـــړ ســـپېلني
نیرنگ ۸۰

غمزه ğamzá: د سترګو په کونج کتل، مکېز، د وروځو په اشاره کتل

سل فتنې د غمزې بيايې په جلب کې
دم قدم د خونرېزۍ په طلب کې
نيرنګ/۴۷

غوټ غوټ ğwəṭğwəṭ: چوټ، پرېکړی، چورلټ

هغه راز چې زړه له شونډو ساته پټ
شوخو سترګو يو په يو وايه غوټ غوټ
نيرنګ/۱۶۰

غوړپکه ğwəṛpáka: څپېره، ډکه، ټکه، ناڅاپي پېښه

چې يې ږدې هسې د ستار په تندي باندې
دا دستار به دې زر پرېوځي په غوړپکه
دږومرجان/۹۷

غوړه ğoṛa: نرمه، پسنه خبره

د جهان بلاجفاوي په سل غوړې
د سړي په شانې شکل سره جوړې
نيرنګ/۵۷

غوږېدل ğwaẓedəl: خبرېدل، له غوږوتېرېدل

په راتلو د کوم صياد دی غوږېدلی
چې نن رنګ د ټول صحرا دی تښتېدلی
نيرنګ/۱۵۰

غول ğol: ډله، لښکر، ټولی

د کينې، غوسې لښکر په هجوم ټول شو
يو منت د نازنين په غولي غول شو
نيرنګ/۱۸

غيرمرضي gayremarzi: ناخوښي، ناراضيتوب، مرورتيا

يو پلو د جدايۍ لار مشکله
بل پلو غير مرضی ديار مشکله
نيرنګ/۱۲۳

# ف

**فاخر faxer**: وياړونکی، وياړمن، وياړ ور

دا قصـــه يـــې لـــه اولـــه تراخـــره
يـو پـه يـو ورتـه بيانـه کـړه فـاخره
نيرنګ/۶۴

**فانوس fanus**: پانوس، څراغ، په لاړ کې و ـيدلی څراغ

پـه هـنر د عشـق نـاموس کلـه پـټيږي
نـور د شـمعې پـه فـانوس کلـه پـټيږي
نيرنګ/۷۸

**فتراک fetrak**: پراس باندې د ښکار تړلوپړی، کنجوغه

نـه خپـل واك راپـاتې شـوی نـه ادراك دی
زمـا زړه تړلـی صيـد دفـتراك دی
نيرنګ/۱۷

**فتوت fatuwat**: ځواني، مېړانه، نرتوب

دا کـوم طـور دی کـوم پـت، کـوم مـروت دی
دا کوم عـدل، کـوم انصـاف، کـوم فتـوت دی
نيرنګ/۶۵

**فتور futur**: سستي، مړاويتوب

راغـی تونـد د بـرق پـه څېر، وښکلـې تـوره
محـض مـرګ لـره زمـا، ډك لـه فتـوره

(...)

فج **faj**: ناو. تنګی، وتګی

کله تر پله لکه برق په یوه فج
کله ودره لکه ښاخ د ګلو، کج
نیرنګ/۵۱

فرجام **farjām**: انجام، پای

ذا اغاز چې د عزیز په ښه انجام شو
خطایي ګوزار رسا دښېك فرجام شو
نیرنګ/۲۰۹

فریفتن **fareftan**: تېرایستل، غولول

چې سبب د آشفتن، د فریفتن دی
د عاشق، معشوق دادن وګرفتن دی
نیرنګ/۱۲۰

فصاحت **fasāhat**: ژبورتیا، خبرلوڅتیا

تمامي اهل مجلس په ګفتګوی
په مجلس د فصاحت کې واهه ګوی
نیرنګ/۱۷

فلاکت **falākat**: بېوزلي، بدمرغی، اسکېرنه

شاه په دارنګه شوکت، په نزاکت کې
او ګدای په دې شدت د فلاکت کې
نیرنګ/۶۴

فلک **falak**: اسمان، هسك، زمانه

چې فلك پکې خلل د تزویر ګډ کړ
وسندرو ته تول شوی په ویر ګډ کړ
نیرنګ/۶۱

فوق الفوق **fawqalfawq**: له پاسه، بر، اوچت

دم در حال وربانديې لاغلبه شوق شو
څو چنده له هغه حاله فوق الفوق شو
نیرنګ/۳۳

فی النار و السقر **finnare wassaqar**: په اور (جهنم) او سقر کې

ژوندي وتښتېده لاړ سره په ماتې
مړه فی النار والسقر شو هلته پاتې
نیرنګ/۱۷۷

# ق

**قبح qobha**: بدي، غندنه، کړنه، ناکارتیا، ناپوهتیا

هره ورځ به مې له غمه لکه صبحه
څیروي ګرېوان پوهېږم په دا قبحه
نیرنګ/۱۲۲

**قرب qorb**: نژدېوالی، نژدېکت

جلوه ګرچې یې د مخ قرب وجوار شو
په آمد آمد ګویا درو دیوار شو
نیرنګ/۴۲

**قربت qorbat**: نژدیکت

له دې قوم سره نه ښایي قربت ستا
بویه تاغوندې ښه خلق په صحبت ستا
نیرنګ/۴۵

**قرین qarin**: نژدی، جوخت

که دانادزړه انصاف خولې ته قرین کا
په ویل به د حمید صد آفرین کا
نیرنګ/۲۱۴

**ققنس qaqnas**: اور مرغه، چې له مېنوکې یې د راز راز موسیقۍ اوازونه راوځي، وایې، چې موسیقي د همده له غږه راوتلې ده

لګاوه یې دم قدم لکه ققنس
د مجلس په خاله اور په هر نفس
نیرنګ/۵۲

**قلقله qolqola**: په پياله کې د شرابو د تويولو کړهار

د ساقي د ترحم په تبسم ږو
د شيشې د قلقلې په تکلم ږو
نيرنګ/۹۸

**قمري qomri**: کوتره، کونتره

لاعلاج د اه فرياد سروې په سر
شوه دارنګ لکه قمري په نارو سر
نيرنګ/۱۶۴

**قوس قزح qawseqazah**: د بودۍ ټال، شنه زرغونه

ملتانۍ قوس قزح لينده په لاس کې
ورابنکو ته د ګلرخ په التماس کې
نيرنګ/۱۵۱

# ک

کاخ **kāx**: مانۍ، ودانۍ

یازرغون ګل لاله شي په شنه بناخ کې
یا زیبا پري پیکر کېښيني په کاخ کې
نیرنګ/۱۲۷

کاړه **kāẓə**: بادیان

و. کـــــاړه و بلنـــــى عـــــام
د حضـــــرت الیـــــاس طعـــــام
شرعه

کاشت **kāst**: کښت. کر، کرنه

دم په دم د مکـارۍ پـه تخـم کاشـت
راختلـې دفتنـو پـه فلـك مياشـت
هم يې کړې خو وعـدې لـه ماسره دي
يکې کوټ د خلاف نـه کړ چې کره دي
نیرنګ۱۷۸/۱۸۰

کاڼل **kāṇəl** کړل، کول (یوازې جمع امرینه لري)

مـور و پـلار سـره بنه کـانئ
د دوی غـم پـه احسـان خـوانئ
شرعه/۱۶۰

کاوش **kāweš**: پلټنه، لټون، هڅه

چې قـاضي هغـه کـاوش ورپسـې د پر کـړ
پـه شـکوه یـې ښـکر زهرکنـد پر کـړ
نیرنګ/۳۴

کبلی kabláy: د هوسۍ بچی

د کبلـــي غـــوښې هـــم ښې دي
ښې بـدی، ښــي خــر خــښې دي

شرعه

کپه kapá: کوټه، دلی، خره

هر زمان مې د اشنا د خال په خیال کې
مـاتولی شـــي پـــه ســـر د مښکـــو کپـــه

دیوان/۲۲۴

کټار kaṭār: له مسلمانېدو نه مخکې د نور ستا نیاتو یوه تپه، (کتر، کتور، کاتي)

کـــافران بـــه دکـــټار مســـلمانان شـــي
کـــه رقیـــب مـــې پـــه ژړا و ترســـېده

دروموجان ۱۰۶

کټ کوټ kaṭkuṭ: غوڅېږ، کم وزیاتول، خوبني

چې یې خلق په خرام سره لوټ پوټ کړ
په خنجر یې د نغمو جهان کټ کوټ کړ

نیرنګ/۵۲

کثافت ksāfat: پیرېدل، پرېږېدل، پندېدل

څه زده د یـــو، د فرښتـــې لـــه شـــرافته
کثـــافت نـــه کـــا الفـــت لـــه لطافتـــه

نیرنګ/۳۵

کچ kač: کم، وړوکی، کوچنی

پښتـــــــورګی دی ســـــــور وچ
پـــه نـــس دروـنـــد، پـــه نفـــع کـــچ

شرعه/۲۲

کر kar: کار، کړ، چار

ولـــې و یـــار لـــه شـــوي کـــره
نـــــه د نـــــهې لــــه منکــــره

کـــــاندي امـــــر پــــه ښه کـــــر
یـــــا کـــــا نـــــهي لــــه منکـــــر
هـــر مؤمـــن چـــې کــور یـــا کـــر شـــي
ځنـــــې ورك د ګنـــاه کــــر شـــي
درېواړه ځایه شرعه

**کربوسکه karbuska**: پومبه، پشم
د غفلـت کربوسـکي وباسـه لـه غـوږه
یـو څو پنـده درتـه وایـم ویـې نغـوږه
پـه حدیـث کـې حضـرت هسـې
وایـي غـوږ باسـه کربسـې
شرعه

**کرتوت kartut**: کړنې، کړه وړه
نـه یې دم، نـه یې قـدم، نـه یې کرتـوت و
هسـې شـانې حیران تللـی لکـه بـوت و
نیرنګ ۳۲

**کرکنډه kərkənḍa**: اغزن غرنی او بېدیاني بوټی، کرکنه
پـه تنـدي بـه دې د غـم کرکنـډې لـوړي
چـې دې کـړې دي د عشـق پـه غـابني لوښتي
دیوان ۳۹۳

**کرګه kərga**: کرګی، تېره پانې بوټی دی
یوبـه وو پـه نظـر سـترګو
آه لــه دې خوخوار کـرګو
شرعه ۱۱۲

**کروړه karoṛá**: کمچینه، متروکه. له مزرو جوړ پړی. چې ځیلی هم ترې جوړوي
څو بـه تـه کـروړې غـړې د نغمـو
څو بـه زړه زمـا وباسـې تـر تغمـو
نیرنګ / ۵۳
چـې آغـاز یـې پـه نرمـی اواز نغمـې کـه
زړه د عشـق پـه کـروړو تغمـې کـه
شاه وګدا ۷۴

مـخ يـې هســې کـرورړې وهــې د زلفــو
چـې يـې پـاس د زړه پـه سـرلگي بچـوي
درومرجان/۱۱۱

کرورړه karora: کمچینه، متروکه ۲- له کړ کوجوړه رسی
مـخ يـې هســې کـرورړې وهــې د زلفــو
چـې يـې پـاس د زړه پـه سـرلگي بچـوي
درومرجان/۱۱۷

ځو بـه تـه کـرورړې غـړې د نغمـو
ځوبــه زړه زمــا وباســې ترنغمــو
نیرنگ/۵۳

کروه koroh: دوه کیلو متره
چـــې يکتـــا ورســـره نـــه وي قبـــاحت دی
يــار لــه يــاره يــو گز لــري وي. کــه کـروه
دروموجان/۷۶

جنـــازې لـــه ورځه گروهـــه
کــه وي لــرې ځلــور کروهــه
شرعه/۱۱۶

کريږ kriẓ: کریږه، کریغه، کرېکه، کوکه
هـر سـړي بـه پسـې هسـې سـوی کریږکـه
چې په تـن پـه يـې د مړيـو غونـی زيږکـه
شاه و گدا/۱۷۶

کړمن karman: کرېدلی، غمجن
يـــا تـــر ډېره پـــورې ناســـت پـــه انجمـــن دی
چـــې تـــر ځانتـــه پـــورې پـــروت او ده کړمـــن دی
شاه و گدا/۷۷

کږل kazəl: غندل، سپکول
پـــه کــږلو د صــراف مــهر کـــاږه شـــي
د نـــادان پــه پــو چگويــی ســره ځه شــي
نیرنگ/۲۱۳

**کرمېزې karmeze**: د پوزې توکي (مواد)، د پوزې تیکګې اوبه

چې يې نه شي چاته لاړې
په دا، نرې کرمېزې، لاړې
شرعه ۷۴

**کسیا kasyā**: مېده مېده، دوره، اوړه اوړه

څه بلا سخته دا نه یم نه پوهېږم
چې کسیا نه شوم د هجر په اسیا کې
دروم‌رجان ۱۲۸

که مې مینه په دروغ نه وای رښتیا وای
په اسیا کې د هجران تللې کسیا وای
دیوان ۴۰۸

**کشایش košāyəš**: ګشایش، پرانستوب، ایله کېدل

په دارنګ یې خپل مشکل ورته په لب کړ
دوباره یې کشایش ځنې طلب کړ
نیرنګ ۱۷۹

**کښ kəṣ**: ست، سلا، بلنه

که پوهېږې چې نا خوښ
ورته کا، له شرمه کښ
دی دې نه خوري، لري باك
دناکام د کښ خوراك
د ناکام په کښ کښېناسته
وي طعام ته د مچ څغاسته
ته دې کا ورته ناخوښه
زیات تر دړې ځلور، کښنه
څلورواره خایه شرعه

**کښکی kəṣakáy**: ښکالو لرونکی

چې پرې بلوسي نسیم غلی کښکی و
د غونچې له تبسمه کوړ وښکی و
شاه وګدا/۲۳

**کښې kəṣáy**: د اولس له خوا د اوبو راوستو او ساتلو لپاره نیولی سړی (میر آب)؛ د فصل او ورشو څوکیوال. کښې (ست) کوونکی. بلونکی

چې زوی وپېژندکېن نې
دی دې شي د ښو کښې
شرعه

هیڅ پروا له اغیار نشته که یار خپل شي
له څښتنه کړي ساتنه کوم کښې
درومرجان/۱۱۳

**کغ kəğ**: (؟)

کوت دې شي د نا بالغ
تمام تن گرچې وي کنغ
شرعه/۱۵۹

**کفران kofrān**: ښه نامننه، د نعمت ناشکري

د څښتن له نعمتونو ذاکر اوسه
په نعمت یې کفران مه کړه شاکر اوسه
ک ۲۱۹

**کک kak**: ذره، خلی، ډکی

له دې خپلې کمینی عاجزیه
ای حمیده د خود بین د سترگو ککه
درومرجان/۹۷

**کم وکاست kam-o-kāst**: کمښت، کمبدنه، کموالی

"یې" ته پېښې له درده دوکه کم وکاست شو
په همسایې د الف ځکه برخاست شو
نیرنگ/۱۱۰

**کمین kamin**: خاکسار، خوار، بې ارزښته

له دې غمه د هوسو سترگې په غم وې
چې د هر کمین کوته په خوله کې خم وې
شاه و گدا/۱۲۴

کمند **kamand**: رسی، پړی

بتدیـــوان د عاشـــقۍ پـــه کمنـــد
پـه مجمـرد ښکلـي مـخ سـوی سـپند
نیرنګ/۱۶۴

کندی **kanday**: چم، مالت، دکلي یوه برخه

د خلـوت لـه عزیزانـو مـې زړه بـد شـي
ځان مـې وشـماره د ترکـو پـه کنـدي بیـا
دیوان/۱۲

کنګال **kangāl**: بې پیسو، تنګلاسی، وینځلی. په اوبو غړل شوی (لوښی)

د پر کنـګال یـې شـاهان شـوي پـه دعـا دي
رســهدلي تـــر مطلـــب. تـــر مدعـــا دي
شاه و ګدا/۱۷۴

کنګل **kangál**: ۱- ګنګړ، د اوبو د سر واوره (یخی) ۲- ږلی

تـېز مـژګان یـې د قضـا د بـاز منـګول وه
ښخ د هـر زیـرك مرغـه پـه سـخت کنـګل وه
نیرنګ/۱۵۶

کوب **kob**: ۱- ټوپ وهنه، دانګنه. ۲- کوړپوالی

چې یې پـرهوت پـه سر پـېټی د غضـب
وو وت کـوب د دال وذال پـه دا سـبب
نیرنګ/۱۱۴

کوپتیا **kupatyā**: ناوړه، ګډوډ، پرېشان

چـــې پـــه اصـــل بګتیـــا و کـــوپتیـــاوو
مـخ یـې ورك شـه کـه اتـه وو، کـه اتیـا وو
نیرنګ/۳۶

د ربښتینـــي خـــوب ربښتیـــا وي
کـــوپتیـــا د کـــوپتیـــا وي
شرعه

کوت **kwǝt**: (؟)

کوت دې شي د نابالغ
تمام تن ګرچې وي کـغ
شرعه/۱۵۹

**کوتل kotəl**: حلالول، پرېکول، پوستکی ایستل

پرېوتلی کوتل نه شي په جنګګاه کې
لوی امان دی غریبي د غریبانو
دروموجان/ ۷۰

څه زړه سوی به په ماکا خونخوارې سترګې
دا چې زړه په ډېر کوتل شي د قصاب سخت
ادبي ستوري/ ۲۰۹

دا د عشق طاعوني رنځ به یې ارمان ...
که د زهد ځان کوتلي شي ژوندي ...
دیو... ۱...

**کوتنه kotəna**: حلاله، قصابي

مستحب کړه دا کوتنه
مشابخو تر وتنه
شرعه/ ۹۰

**کوته kota**: زیان، تاوان، کوټه

ده غنم د ده په نغوته
وخوره، ورغله دا کوته
شرعه/۱۵۴

**کوته kotə**: کوتنه، حلاله، قصابي، کوتل

وې و سرته نیمکې غوښې
په کوته کې د دوست (ص) خوښې
شرعه/۲۴

**کوتی kutay**: د ګوتو د پیوستون چاود، د ګوتود منځ تشه (خلال) د نوك او ورې تشیا

بل دې کا د ګوتو کوتې
بند په بند پاکیزه ژتې
شرعه/۴۴

**کوثر kawsar**: په جنت کې د ډنډ نوم

له اوبو یې د شراب اثر مونده شي
له شرابو یې خمار د کوثر مونده شي

په بازار کې يې خوبان په هر هرلوري
په سرو شونډو له کوثره شکر پلوري
نيرنګ/۸/ ۱۰

**کوټل kotəl**: بدول، اندېښمنول، غمول

دا يې ووې شاه له مخه وراته
په رټل سره يې زړه ښه وکواته
شاه و ګدا/۱۸۷

**کوټنګر koṭangar**: ګرم، بې ښې، بې کاره، لټ

د غفلت په کوټنګر ومې زړه سوځي
چې همه له تندې مري د رود په غاړه
درومرجان/۹۰

**کوټنه koṭəna**: ټکونه، نړونه، چورچور کونه

چې ديار دزړه ساتنه ضرروي ده
په ساتنه يې ځان کوټنه ضروري ده
نيرنګ/۱۲۳

**کوټه koṭa**: (؟)

له دې غمه د هوسو سترګې په غم وې
چې د هر کمين، کوټه به خوله کې خم وې
شاه و ګدا/۱۲۴

**کوټی koṭəy**: سر، کوپړه، ککرۍ

اوس به ځي له مانه عشق څرنګ ناصحه
چې له نوکه تر کوټيه موی په مو لاړ
درومرجان/۳۲

**کوچه koča**: ړېښه، نيله

ولی هسې وچې پوچې
چې وهې د اسلام کوچې
شرعه

هـــئ توبـــه د احتســـاب لـــه وچـــو پـــوچـــو
د غـــرور اس مـــې واهـــه پـــه کـــوچـــو کـــوچـــو
نېرنګ/۲۸

کور **kwar**: انګور

هـــر قـــدم يـــې چـــول زړونـــه د دلـــبرو
پـــه مثـــال لکـــه دانـــې د پخـــو کـــورو
نيرنګ/۳۵

کورنش **korneš**: سر ټيټي، درناوی

تمـــامي اهـــل مجلـــس پـــه ســـل دانـــش
ورتـــه وکـــړه پـــه تعظيـــم هـــزار کورنـــش
نيرنګ/۴۹

کوراجی **korajay**: کور ناستی، کور غاړی

کوراجـــی ســـړی هـــېڅ نـــه دی
د هـــېڅ اړو د پـــېچ نـــه دی
شرعه

کور اروی **kor arwe**: (؟)

يو ښه باز يې په لاس واخيست کور آروې
لکه کښېني باز په ښاخ باندې د سروې
(..)

کورمښت **korməšt**: سترګې مښل، پر سترګو سوك ايښودل، له درده تاوېدل.

چـــې لـــه ډېره غمـــه زړه ورځخـــه ورغـــښت
د ليچـــن پـــه دود يـــې کـــړ ســـره کورمـــښت
نېرنګ / ۵۹

کورنګ **korang**: سوربخن اس

راغـــی څار شـــو تـــر کورنـــګه د شـــاهد
رضـــا جويـــه هـــزار رنـــګه د شـــاهد
نيرنګ/۱۵۳/۱۲۹

کوړ kor: هېڅ، په هېڅ شمېرلی

په حمید د خپلې مینې سېلاب جوړ کړه
له سینې یې ماسوئ بندونه کوړ کړه
شاه وگدا/۲۲

کوږل kozəl: کوتل، حلالول

لکه لښته تاو تاو کېږه سترگې مږه
په نغمو په کرشمو خلقې کوږه
شاه وگدا/۶۹

کوږ مزې kozməze: (؟)

په جنت به زړې ښځې
ننه نه وځي کوږ مزې
شرعه/۷۲

کوسر kawsar: کیسر، سرسام، د مغزو د پړسوب ناروغي

چې کوسر د آه سرد ور باندې لگي
وربه نه شي د هغه چاو د پرهار خولې
درومرجان/۱۳۶

کولنډ kulənḍ: د اپللو لپاره د ښاروی یا سپي غاړې ته پروت لرگی

عمر هسې کړو هجران راباندې پنډ
لکه پرېوځي د چا غاړې ته کولنډ
دورمرجان/۲۶

د سرکشو توري غاړې ته کولنډ شوې
لافې شافې گېرو پېر یې په سر پنډ شوې
شاه وگدا/۱۹۰

کولېر koler: زنار، بند، غاړه کی

تر گناه به تېر دلېر شي
بند د کفر په کولېر شي
شرعه

کونډه konḍə: لرګینه کونډۍ، کاسه

راکړه مې ډکه کونډه پټ له اغیاره
چې په خواب اوده فتنه نه شي بیداره
نیرنګ/۷۵

کهښت kəhəṣt: بدبویي، خاربښت، کاهښت

له صحبته یې کهښت د حرص خېژي
وي په اصل کې پمن اهل دنیا
درومرجان/۳

زه له خپلې بدبختۍ هسې پوهېږم
چې به ډېر په دا لر هجر وکهېږم
نیرنګ/۱۶۵

چې د شعر کسب زښت وي
د زړه رنځ د روح کهښت وي
(..)

درقیب کینه مې خوا کهوي هسې
لکه مچ په آب و خور کې شي د چا ګډ
درومرجان/۲۷

کېش keš: دین، مذهب، ګروهه

چې ددرست مجلس په ګوته کې غمې و
عشق اندېش، محبت کېش غوره ځلمی و
نیرنګ/۱۷

# ګ

**ګاډېر gāḍer**: ګډلی، ګډ شوی، ګډوله ډوډۍ

منــــافع د شـــعر ډېر دي
د ضـــرر ســـره ګاډېر دی
چې يې ښه او بدګا ډېر شي
بيا يې خير ترشره ډېر شي
هنرونـــه د جنـــګ ډېر دي
خو مـــردۍ ســره ګاډېر دي
شرعه/۵۲/۱۹۱/۲۰۱

**ګانده gānda**: ګهانده، ګهنده، سبا، بله ورځ، را راوانه ورځ

پـــرې بـــه ووهمـــه ځان لـــه ډېره غمـــه
کـه مې نـــن ګانـــده تـر لاســو خنجر راغـی
درومرجان/۱۱۰

نـن وګانـده خـېر عـار، شـر افتخـار شـو
د ګلونـــو د ور لاړ، دور د خـــار شـــو
نېرنګ/۱۸۸

نـــن و ګانــــده خپـــل پـــردي
خـــوار ســـرې ګنې ردي
شرعه

**ګاهک gāhak**: ګوابنده، ګوابنونکی

پـس لـه دی مې روا دار پـه ازارمـه شـیٔ
پـه مرده بـاندې ګاهـك د ګوزار مـه شـیٔ
نيرنګ/۱۰۰

**ګايل gāyəl**: ژوبل، ټپي، زخمي

په نظر چې مې دې وکوته ددل سر
اوس تبه په ښو خبرو د ګايل سر
دره مرجان/۳۱

تل دده د مستو سترګو له ګايله
په عوض د وينو مې ځي زما دله
داغې سرې جامې اغوستې لکه ګل
مهربان په ولاسه د خپل ګايل
نيرنګ/۵۵/۲۷

**ګڅه gaca**: دمنځوى او کچې تر منځ ګوته، ځلورمه ګوته، لاکوکړه

پسې منځه، ګڅه، ګچه
پسې کته بې لالچه
شرعه/۴۴

**ګرامي gerāmi**: ارزښتمن، قدرمن، ګرانبيه

بل سره نشته دار رنګ درګرامي
مګرپافت شي په دکان د "نظامي"
نيرنګ/۱۱

**ګروهېدل grohedál**: با ورکول، عقيده لرل، لېوالتيا، ځيرېدل

ستا په در کې رقيبان راباندې بلوسي
نه ګروهېږي په مکه په مدينه
دره مرجان/۱۰۵

**ګړ gar**: کلا، کوټ

په ګړۍ کې ښه پوخ ګړ هوار ميدان کا
يا د توپو بدې، خولې دي، يا د ويار خولې
ديوان/۳۸۱

**ګګ gag**: (؟)

لکه ګګ هسې وچ کړى لوړې تندې
په هيچا باندې ومه شه دده شندې
شاه و ګدا/۱۰۹

ګوار gwār: ګوره، ګورا، (سور) پېرنګي

خــوار مومــن چــې ګني خــوار
شــي بــه خــوار هغــه ګوار
شرعه

ګواښ gwāṣ: جګړه ماران سره بېلول، خلاصول

نښتــی زړه ارجــل برجــل پــه دام د زلفــو
پــه دروغـــو کـــړي ځان تـــه ګواښ
(۰۰)

ګواښ کېښ gwaṣkeṣ: جنګ او سوله، ژغورل

عــاقب پــه بنــد د زلفــو بنديــوان بوتلــم ســرو ســترګو
که هر څو مې شو وروړاندې صبر زهد په ګواښ کېښ
درومرجان/۴۱

که يې سل خواږه د حسن په ګواښ کېښ شي
دم قــدم بــه لکــه بنــد د ګنــي بــېخ شــي
درومرجان/۱۳۹

يار له يـاره سره کاندي رابطه د اخلاص پته
بېګا نه وو سره کېږي په څرګنده ګواښ کېښ
ديوان/۱۳۹

د جنــګ غشــي کــړه غليــم پــه خولــه واښه
هيڅوك نه وو چې يې جنــګ تـه ځان ګواښه
شاه وګدا/ ۱۹۰

ګوتار gotār: کوتار، اخته، لتاړ

چــې بــد کــار ســره روزګار شــي
پــه دادوه چــارو ګوتـــار شبـــي
شرعه

چــې زمــا د کــړو و يــار کــوي ګوتارشــه
د ګلــرخ د کــړو ورزځو پــه کــړو کــې
دزومرجان/۱۳۱

**ګورت gwarət**: د مسواکې او کټې ګوټې منځ

راغی ګډ شو په ښکار ګاه غشی په ګورت
دم په دم سولول زړونه لکه قورت

نیرنګ/۱۵۱

**ګول gol**: ۱- ګډ ۲- دغوبله ستن یا موږی

غم د هجر کړم په وصل کې ناښاده
په شربت کې اېرې مه شه ګول دچا

درومرجان/۹

سیده جام د خوښی نه وي په خوله ایښی
بیا اېرې د درد دوغم کړې یکې ګول

درومرجان/۵۹

**ګوڼ guṇ**: ځېر، ښه، توګه،د پارسي ګونه

سبا خدای ته زه او ورونه
ودرو سم د نن له ګونه

شرعه/۵

د تمییز کسي دې روڼ کا
پري دې ځیر د هرچا ګوڼ کا

شرعه/۹۱

**ګوی goy**: پنډوس، پنډوسکه

تمامي اهل مجلس په ګفتګوی
په مجلس د فصاحت کې واهه ګوی

نیرنګ/۱۷

**ګه gah**: یو وخت، کله

نتیجه یې کله غم ، کله ښادي وي
وظیفه یې کهې بند ، ګه ازادي وي

نیرنګ/ ۱۳۰

ګیت **git**: سندره، نغمه

په هنر د پاکوبی چې آغاز ګیت کړ
سنګین زړه لکه دانه د کورو چیت کړ
نیرنګ/**۵۱**

ګیته **giṭa**: (؟)

په ګیتو او په نقط
عارف نه نګوبني غلط
شرعه/۲۰۲

ګیسو **gisu**: څنې. زلفې

سر تر پایه لکه مهر شفق پوش و
د ګیسو له توره شامه هم آغوش و
نیرنګ/**۵۵**

# ل

لا la: نه، یه

چې د عشق د میخانې شراب یې نوش کړ

د شعور لا و نَعَم یې فراموش کړ

نیرنګ/۲۹

لاأُحِبُّ الآفلین laohebbolafelin: پرېوتونکی یا غورځېدونکي مې نه خوښېږي پریوتونکی مې خوښ نه دي

چې ورلاندې د یقین قالین یالین شو

بذله ګوی په لاحب الافلین شو

نیرنګ/۲۰۸

· لارغه lārğə: خنډ، درنګ، لرغونی، ځنډنی

ګاه لارغه دیار یاد په تله توله

کله یارو عده خلاف د جهان بوله

وکړیار په څه کبل دومره لارغه

کوم صیا دوښکه وزرددې مرغه

نیرنګ/۱۹۸

لاس غړونی lāsğaṛunay: لاسترلی

کله مین زړه په توبه اوړي. هغه صید

نه وي خلاصیدونی چې یو ځل شي لاس غړونی

د ... ۱۱۱

لاسوندی lāswandáy: باهو، باوو، وبنی

لاسـوندو چـې بـه يـې حـی الفـلاح کـړ
په عشاقو به يې فرض، نمونځ د صباح کړ
نېرنګ /۱۵۸

لالن lālən: لالی، ګران

د دې دومـره تفـاوت سـره لالنـه
دوارو پـت د محبـت سـره سـاتنه
نېرنګ /۶۴

هر چـې نـه ده محمـد (ص) کـړې لالنـه
مکـړه تـه هغـه بنـدګي هغـه پالنـه
نېرنګ/۲۱۶

نـه شـي پـېژانـدی لالنـه
د حديـث کـوه پالنـه
شرعه/۲۸

لبيک labayk: درته ولاړيم، په اطاعت درته ولاړيم

چـې لبيـکَ ای حضـرت قـاضي لبيـکَ
مـالکَ سـند، حجـت شـو، هـم عليـکَ
نيرنګ/۲۹

لتاړ پتاړ latārpatār: وران ويجاړ، ګډوډ

بس که دېر لتاړ پتاړ د غم په سم شوم
دلسوزي بويه په ما، د ترحم شوم
نيرنګ/۱۰۰

لغ laǧ: (؟)

کـوت دې شـي د نابـالغ
تمـام تـن، ګر چـې وي لـغ
شرعه/۱۵۹

لُغت luǧát: کره خبره، تکوري، طنز او کنايه

: سـوري غـوا لغتـه
حـتی شـي بـې لُغتـه
شرعه/۱۵۳

**لطافت latafat**: نرمي، پوستوالی

لايـې ګل د لطـافت پـه غـوړېده و
تبســم يــې د شـبنم پــه ژړېده و
نيرنګ/۱۴۷

**لړی laray**: ناکامي، دبري بې

د ګيـدړو ښکـاريې کـړ، پـه مـزري واوښت
د بــري دپــاره تــه، پــه لــړي واوښت
نيرنګ/۲۷

**لوء لوء منثور lolo**: دانه وانه مرغلرې، شيندلې مرغلرې

پـه آيـات د لـوء لـوء منثـور د ځېر شـو
لـه تصويره يې هالـه صورت پـه ځېر شـو
نيرنګ/۱۰۶

**لوټ lwaṭ**: سپك، متره، ځواك، تاب

د ښنـې پـه ځېر يــې زړه د عشـق لــه بـټه
بــېرون ولــېده لــه تـاب ســره بــې لــوټه
شاه وګدا/۵۲

**لوټن luṭan**: لوټل، تالاکول، زوراخيستل، تروړل

هسې رنګ بـه پـه نـځا لـوټن کوتـر شو
چـې بــه فکــر دپــري ورتــه اوتــر شــو
نيرنګ/۵۱

**لوټېری luṭeray**: لوټوونکی، لوټمار

پــه شــېوه د نادرحســن ښاپـــېری
پــه جلــوه د صــبر، زهــد لــوټېری
نيرنګ/۵۳

**لوړل lorəl**: دروند او کلك ځيز له ځايه بېلېدل، لېږدېدل

هـېڅ مـې کـډې د زړه نــه لــوړي لــه ښکليــو
کـــه نـــاصح د ژبـــې پوســـت تـــل اړوي
درومرجان/۱۲۰

ستا پــه مینــه کې مــې بخــت هســې پولــه شــو
کــه وغــره تــه کــړم تکیـــه لـــه بېخـــه لـــوړي
دړومرجان/۱۲۱

**لوستل lostəl**: نوستلٔ شیندل، بادول

تصـــور چـــې یـــې ددي مـــاتم تصویـــر کـــړ
ځمکـې خـاورې پـه سرلوســتې، فلـك ويركـړ
نیرنگ/۲۰۲

پرېواتـــــه د رقیبـــــانو پـــــه ســـــرکانې
مـاچـې خـاورې سـتاد درپـه تنـدي لوسـتې
دیوان/۳۳۳

**لوښتل loṣtəl**: لوړل، پسې لېږدېدل، پسې اوښتل

پـــه تنـــدي بـــه دې د غـــم کرکنـــدې لـــوړي
چـــې دې کـدې دي د عشـق پـه غـابنې لوښتـــې
دړومرجان/۱۳۳

**لوښلونې loṣlune**: کنگالي، هغه اوبه چې لوښي پرې کنګال شوي وي لوښنې اوبه

چـــې وڅښي پـــه ادب تلونـــې
تـــر ځتلـــو پـــس لوښلونـــې
شرعه/۱۹

**لوکېدل lukedəl**: سوځېدل، لوګی کېدل

د خولـې زخـم د سـکوت پـه تـار رفـو شـو
شـکایت ورتــه پــه شــان د سِپَندلو شــو
نیرنگ/۲۰۹

**لمعان lamaçān**: ځلند، ځلاند، بل

چې یې حسـن لکـه لمـر هسـې لمعـان شـي
برېښ پـه سترګو کـې د مصـر د کنعـان شـي
نیرنگ/۱۰

تماشـې تـه يـې د ښکلـو لـه لمعانــه
وو ولاړ هــزار کشـــمير، هــزار کنعانـــه
نيرنګ/۱۶

**لن ترانی lantarāni**: وبه مې نه وينې
خو لـه يې رمزلـه تنګۍ "لـن ترانـی" کـا
پـه نيم حرف يـې د توبـې ژبـه ګرانـي کـا
نيرنګ/۲۰

**لونډ lawanḍ**: ناواده کړی، جره، لنډه غر، خوشکی
ګاه هنـــدوان، ګهـــې ســـني مســــلمانان شـــي
ګاه شـيخان تسـبيح پـه لاس، ګاه لونـډان شـي
نيرنګ/۱۹

**لوول lowəl**: لل، ويل، (له ګواهۍ سره راځي)
په هر ځای چې به ګومان لووه ګواهي
دود ولــــه پـــــه تبـــی يـــا ګراهـــــي
نيرنګ/۲۰۲
له خامۍ جوش و خروش خېژي لـه دېګه
لـي د زړه پـه مـرګ ګواهـي حياتـه ژبـه
درومرجان/۷۷
کــــا ســـــلام لــــوول اول
د خــــودۍ جامــــه څول څول
سـلام لـوه پـه لاس، پـه ګوتـه
بـــد دي بـــد ، بـــې تفاوتـــه
شرعه

**لوه loh**: اشتها، خورمنځ، څه ځيز ته زړه کېدل
دا بـد لوهـی نـوس دې مـوړ پـه بـدو نـه شـو
کــه هــر څو دې ايلــه پــرېښو بـــې د هشـــته
ديوان/۲۵۱

**لوی ləway**: (؟)

هسې زه په ځنګ کتو د ترکو غوږ کړم
لکه ورسي رسا د توري لوی
درومرجان/۱۱۱

**لهر lehər**: څپه، چله، موج

استقبال لره یې خلق د درست ښهر
هسې راغله لکه سیند، لهر لهر
نیرنګ/۱۰۱

**لېوال lewāl**: ۱- مایل، خورمنځوال، د اشتها خاوند ۲ - لېوالتیا

یم په میاشت کې د شوال
ډېر مې دی ځکه لېوال
شرعه/۱۳۷

# م

ماجریٰ mājarā: پېښه، څه چې پېښ شول

د هغه په خدمت ناست پلار د عزیزو
ایښی ده په ماجریٰ غوږ د تمیزو
نیرنگ/۳۳

ماسویٰ māsewā: بې له ده، له ده پرته

چې یې نه موند هېڅ تر ته ماسویٰ
بې له مرگه ددې رنځ دارودوا
نیرنگ/۱۶۷

مالامال mālāmāl: ډک، ترموګوډک، پرمورګو اوښتی

مال مالې پیالې راکړه چې یې نوش کړم
تروصال یې غم د هجر فراموش کړم
نیرنگ/۱۴۳

مامضیٰ māmazā: تېر شوی

مامضیٰ بلا جفا واړه درګوره
پس له دې مې په هجران مه وژنه ګوره
نیرنگ/۶۸

مالکَ malaka: ستا څه دي؟ څه درشوي

چې لبیکَ ای حضرت قاضی لبیکَ
مالکَ سند، حجت شوهم علیکَ
نیرنگ/۲۹

**مانه mānā**: دګیلې بیا څلي (تکراري) ترکیب، ګیله مانه، ګیله ګوزاره

عــرض حــال یــې همــه واړه ومانــه
پـرې یـې نـه ښو (ه) پـه خـاطر کـې څه مانـه
نیرنګ/۵۷

**مایحتاج māyahtāj**: اړتیاوې، اړتیاوې

مایحتــاج خدمتــګار یــې ورســره کــړه
ترسپوږمۍ یې یو څو ستوري چاپېره کړه
نیرنګ/۱۲۸

**مبادا mabādā**: خدای مه کړه، هسې نه چې، نه چېرې

مبــادا کــه لــه دې حــال، خــبره داشــي
په عالم به یې له خولې شهرت پیدا شي
نیرنګ/ ۱۹۰

**مجاز mojāz**: ۱- اجازه ورکړ شوې ۲- د حقیقت بل

مجــاز هــر چــرې کــار ســازد حقیقــت دی
نــور دی پـاتې پــه دا کــار کــې څه دقــت دی
نیرنګ/۶

**مجرد mojarrad**: څړه، یوازې، لوڅ، سملاسي

د مــلا پــه مجــرد د لیــدود لــه
صبر، هـوش، قراریـې والوتـه چـه لـه بلـه
نیرنګ/۴

**مجمر mejmar**: نغرې

مـوم لـه اوره سره څه کـا، یـخ لـه نـوره
څه شـوخي د سـپند رسـي لـه مجمـره
نیرنګ/۱۶۴/۲۴

**مجمع majmaع**: ټولنځی، دراغونډېدو ځای، ټولی

مکتـب څه، چـې و مجمـع د پریـزادو
ښادېده بـه پکـې زړونـه د نـاښادو
نیرنګ/۱۰۵

**مخ استر maxatár**: یو ځای، پیوست

که یـو ځل لـه هغـه مخـه مـخ اسـتر شـي
تـه بـه هـم زمـا پـه څېر خـراب او ترشـي
نیرنګ/۲۱

**محتمل mohtamal**: کېدونکی، د کېدو وړ

څو څورنـــګه رګ وراګ پـــه عمـــل راوړي
یـو صـــورت پـه څو معنـو محتمـــل راوړي
نیرنګ/۱۹

**محظوظ mahzuz**: خوند اخیستی

چـې یـو څو ورځې محظـوظ پـه دا طـرب شـو
شـېر شـکار، آهـو،صحراتـه مضطـرب شـو
نیرنګ/۱۴۸

**مدار madār**: چورلیځ، محور

د دراز عمـــر لـــه ونـــې برخوردارشـــې
د ښادۍ د دایـــرې قطـبِ مـــدار شـــې
نیرنګ/۱۱۵

**مدهوش madhoš**: بېسده، بدمست

تـه هـم ای د کبرنـاز پـه مـی مدهوشـه
خطـایي زمـا خســته کـړه فراموشـه
نیرنګ/۹۲

**مذکور mazkur**: یاد شوی، نومړی، نوموړی، یاد

پـــه مذکـــور دده دحســـن هـــره ژبـــه
د کـــوه طـــور دونـــې پـــاڼه وه صاحبـــه
نیرنګ/۲۱/۱۲

**مرآت merāt**: ښیښه، هېنداره

پـــه رومـــال یـــې دادب، غبـــار د لارې
لـــه مرآتـــه د مـــخ لـــرې کـــړ څو وارې
نیرنګ/۱۴۸

**مرسته mrasta**: لټون، کومك، باب، پار، اړه په وروستۍ مانا:

په دا مرسته د پر نقلونه
دي راغلي دليلونه
په دا مرسته روايت دی
بنه يې واوره کفايت دی
شرعه

**مرصع morasaϛ**: جړ او شوی، سينګارلی

مرصع تېغ يې ترملا په هسې شان کړ
چې يې طعن د فلك په کهکشان کړ
نيرنګ/۱۲۴

**مرغونه mərğuna**: طالع، بخت

يکې نښتي د هوا زيرك مرغونه
غني خدای دې نه کابد د چامرغونه
نيرنګ/۸۵

**مرکب markab**: سورلی، د سورلۍ ځاروی، اس، خر

چې شاهد ځنې جلب د مرکب واخست
نور عزيز تاب و تپش لکه کب واخست
نيرنګ/۱۲۲

**مروت maruat**: نارينتوب، مېړانه، سړيتوب

يا څه عيش يې دا مزګير ددې خو د کام شو
يا يې لنډ د مروت له لوريه ګام شو
نيرنګ/۱۹۸

**مريژي mariži**: د زووني (زوکړې) له امله بلنه، عقيقه

په اوومه ورځ خوش خويه
مريژي د فرزند بويه
پسه دی نر، که ماده ياره
مريژي پرې شي بې وياره

مـــرېږي چـــې كـــوي ښايـــي
دا دعـــا پـــه ذبـــح وايـــي
شرعه

**مړخندی mərxandáy**: مسكا، په شونډو كې خندا

زنــده ســر پــه مــرګ حــال پكــې ژونــدی و
هــر خنــدی پكــې د زركــې، مــړ خنــدی و
شاه وګدا/۱۱۸

**مزاح mezāh**: ټوكې، ټوكې ټكالې، ټوكې وشتې

سم لـه لاسـه بـه يـې وركـړي پـه مـزاح
د وګړو خوينــدي، لــونې پــه نكـــاح
نيرنګ/۱۷۹

**مزينه mazina**: مزه ناك، خوندور، په خوند

ځان كـا تـه پـه ايينــه كــې
دي ســنت پــه مزينــه كــې
شرعه/۴۶

**مژګان mežgān**: باڼه

د كــړ ورووځو لينــده پــه لاس بركــښه
كــاږه غشــي د مژګانــو ســم پــه نــښه
نيرنګ/۱۵۶/۴۷

**مستمند motamand**: اړ، محتاج

څه يــې زر، څه يــې هــنر كــړ مســتمند
د هغــه شــېر هــم شــكار آهوكمنــد
نيرنګ/۱۳

**مسلمه mosallama**: منلی، منل شوی

كـه مـې دا بسـاط پـه زړه شـي مسـلم سـتا
د بـل چـا نـه دی زمـا دی سـر، قـدم سـتا
پـس لـه دې مـې رضـا ايـښي پـه رضاسـتا
مسـلمه پـه هـر بـاب رضـا قضاسـتا
نيرنګ/۷۲/۶۷

مشعبد mosaabed: کوډګر، پاړوګر، شعبده باز

مقلـــد، مشـــعبد، بـــګت بـــازان دي
د ځـ ـن فـن پـه اصطـلاح کـې اسـتاذان دي
نیرنګ/۱۸

مشوش mosawas: اندېښمن، ترهور

چې کباب د ښکـار د شـوق پـه آتـش یـم
پـه ګلګشـت پسـې د ګلـو مشـوش یـم
نیرنګ/۱۳۴

مښل msəl: لګېدل، (واتېن) وهل (طی کول)

بـس کـه ودې مـــښووې د برې پرتـــه پرتـــه
د ځوانـــی لـــوړې ژورې ښکتـــه پورتـــه
دیوان/۲۵۰

مښود msod: زیار، هڅه، کوښښ

مخـرونی و یـار تـه مـه غـواړه پـه عشـق کـې
څو پـه سـترګو کـې د اوښکـو مـښود نـه شـي
دومرجان/۱۲۴

هســې شــان یــې پــورې کــړ د پنــد مــښود
لکــه مســت هوښیــاروي څوك، پــه ســرود
نیرنګ/۸۵

مښودل msodəl: مښل، مړل

چـې ایـرې د بـې قـدرۍ شـي پـرې مـښودې
ایینــــه د هغـــــو زړونــــو وي رڼه
دومرجان/۸۵

مصدق mosddeq: تصدیقوونکی، ملاتړ

پـه لیدویـې یـو راز دار پسـې روان کـړ
ورسـره یـې مصـدق خیـرې ګرېوان کـړ
نیرنګ/۳۹

مصر mesar: ښار

ودانـی یـې وو سـل مصـره ویـران کـړي
آب و تـاب یې ووسـل چینـه حـیران کـړي
نیرنګ/۱۵۳

مطرب motreb: نغمه ګر

راشــه راوړه چنـك ونـی مطربــه غـږ کـړه
مشرف مې په ددیدن په زړي غـوږ کـړه
نیرنګ/۲۳

مطلع البدر matala çolbdar: د څوارلسمې سپوږمۍ، ختیځ، روښنایي، ځلا

پــه ګیســو یــې جلـوه ګرلیلــة القــدر
لــه جبینــه یــې پیــدا مطلــع البــدر
نیرنګ/۱۵۶

معتاد moçtād: روږدی، عادت شوی، اعتیاد، عادت

نـه یکلختـه پـه چـاظلم کـا، نـه داد کـا
کلـه هغـه، کلـه دا پـه خپـل معتـا د کـا
نیرنګ/۷۰

مع السهو والنسیان maçasashw wa nesyan: له سهوې او هېرې سره

د طــرف د خولــې جــواب راتــه اســان دی
چــې انســان دی مــع الســهو والنســیان دی
نیرنګ/۲۱۳

مغان moğān: اور لمانځونې

کـه بیـاراغلو هغــه ځای، هغــه څوان نــه و
میخانــه تشــه پرتــه وه مغــان نــه و
نیرنګ/۲۰۱

مفتون maftun: په بلا اخته شوی، مین

بـې وسواسـه یـې لـه لاسـه مفتـون ونیـو
پـه دارنـګ یې ورتـه جـام د افسـون ونیـو
نیرنګ/۲۸

مقراض meqāz: بیاتي، قیچی

پـه زبـان لکـه مقـراض ویزاروونکـی
پـه بدخـوی لکـه لـرم ازاروونکـی
نیرنگ/۵۷

مقلّد mqalled: تقلیدوونکی. پیښاوو

مقلـد، مشـعبد، بـګت بـازان دی
دخپـل فـن پـه اصطـلاح کـې استـاذان دي
نیرنګ ۱۸

مکرر mokarar: تکرار شوی. راغبرګ شوی. بیا بیا

اوربدلـی مـې دا نقـل مکـرر دی
البتـه چـې مکـرر یـې مقـرر دی
نیرنګ/۱۲/۲

ملتمس moltames: هیلمن، غوښتونکی

د عزیـز چـې تللـی عقـل راغـی سـرته
ملتمـس پـه دا ګفتـه شـو و دلبرتـه
نیرنګ/۱۷۵

ملمع molamaʕ: ۱- ځلـولـی، روښانه کړی. رنګارنګ ۲- ګډلی زر ۳- دوه ژبی بیت، دبیت یوه مسره په یوه. بله په بله ژبه

پس لـه دې یې دا حیلـه کړه پلارتـه وړانـدې
زبر پـه زریـې ملمـع کـړه لاتـدې بـاندې
نیرنګ/۱۳۴

ملوک moluk: پاچایان د ملك (پاچا) جمع

چـې کـوم کـارور ځخـه شـوی پـه سـلوك وي
نـه یـې خـوار پـه مـرادپریـښی. نـه ملـوك وي
نیرنګ/۱۸۹

ملول malawəl: په واك کې راوستل، کابو کول

چـا وې دا څه یـا صاحبـه
وې پـه ښه ملـوم ژبـه
شرعه/۵۸

**منجلی monjali**: ځلانده، ځلند، بل، روښانه

بیا بهتر په ذی النورین پسې علی دی
چې یې هر مشکل له مخه منجلي دی
شاه و گدا/۳۵

**مِن وعَن menoçan**: ټکی پرټکي، کټ مټ

من و عن یې ورته حال ووایه وروره
د شاها.، د محتسب له شرو شوره
نیرنګ/۱۳۵/۳۲

**مواس mawās**: چغولي خور، ساتندویه، مشر، نوکر، تالاتګر

هغه مخ چې مې کعبه وه د دوو سترګو
مسلط کړو باندې خط، مواس د کفر
په قوت د یار د در، دګدایی
د اورنګ پادشاه د تخت لاندې مواس شوم
چې به تل پکې کول سترګو خونونه
د مخ ښهر یې د رېږې مواس ونیو
درومرجان/۲۹/۶۳/۷۳

**موتي moti**: مرغلره

چې تر ملایې په موتو جړاو خنجر کړ
پرې یې غوخ د صبورۍ باقي بنجر کړ
د غفلت موتي دې وکاږه له غوږه
یو څوپنده درته وایم ویې نغوږه
نیرنګ۱۲۵/۲۱۴

**موخه muxa**: نښه، هدف

لایې هسې تېره غشې دښو
ښخېده دزړه په موخه تربنو
نیرنګ/۱۴۷

**موسلي mosali**: (؟)

چې قبول یې لام خدمت په التماس کړ
نور یې لام تور موسلي جارو په لاس کړ
نیرنګ/۱۱۱

**موقوف mawquf**: راستون شوی، اټال شوی، ځنډولی

لاجلوه دذر موقوفه وه په وخت
چې باد یو وړ د بهار دا بر رخت
نیرنګ/۱۱/۲۳

**موند mund**: زوړد، بلد، ورمات

بلکې اجر پکې موند شي
چې په دا اجر ځوك موند شي
پکې پند د عبرت موند شي
د خدای دوست باندې به موند شي
دا نامرد که نه شي موند
منکوحې ته دې شي موند
تول شرعه

**مهر mehər** لمر، نمر، نور

همسفر یې په کاروان کې یو یوسف دی
چې محل د مهر وماه د تاسف دی
نیرنګ/۱۸/۵۵

**مهرۍ mahrəy**: ښکلې، زړه پورې، منلې (د جامو صفت)

نه دې اغوندي مهرۍ
هسې رنګ جامې نرۍ
شرعه/۱۵۹

**مهم mohem**: چاره، کار، د جنګ هوډ

په هغه کور کې دې هم
سړی نه کا د خوب مهم
د کرسي آیات دې هم
ولولي د تلو په مهم

ډېر اصحاب پخپل مهم
پسې ننووته هم
ارتینه دې خپله هم
دا قدر کاندي دا مهم
تول شرعه

**مهوش mahwaš**: سپوږمۍ مخی، ښکلی

راشه راکړه هغه مې، ساقي مهوشه
چې یې تل راته توندي ستایې بې غشه
نیرنگ/۱۴

**میرک mirák**: میر، مشر

ورته وویل ځیرك زوی
د دانش په ملك میرك زوی
شرعه/۱۲۸

**میرمایي mirmāi**: دادم خان درخانۍ کیسی یولوبغاړی

دادم د درخانۍ په پاکبازۍ رو
د بې ننګه میر مایي په بې نیازۍ رو
نیرنگ/۹۹

**مېزر meyzər**: بورکه (برقع)، څادري، پړونی، مخیانه، بګړۍ، ملاوستنی

هره ستن یې هسې شان وه په نظر کې
لکه قد د نوې میاشتې په مېزر کې
شاه وګدا/۱۵۴

**مېزوب mayzub**: لېونډوله، لېونطوری، بېسده

محبت له خپل محبوبه
پټ ختې مه ساته مېزوبه
شرعه/۱۰۵

هغه ځای هسې په فکر کې ډوب کښېناست
چې له خاورو سره خاورې مېزوب کښېناست
نیرنگ/۱۳۲

**مېژل mežəl**: مېتل، میتیازې کول

هـر يـو سـپی راباندې مـېژي، پـښه کـه پورتـه
هــر ســفله مــې لکــه مــوم نیســي واورتــه
نیرنګ/۵۹

**میښ miṣ**: رېږ، ناکرار

لا بـ، نـه وي اوده شـوی بیـا بـه ویـښ شـي
که هر څو يې زړه په خوب پسې میښ میښ شي
درومرجان/۱۳۹

**مېښل meṣəl**: مښل، مږل، سولول

هېڅ مې زړه له ساده رویو نه شه تور که مې سل ځله
په سینه پورې پـه ځلـه، د مکـې اطلـس و مـېښ
دیوان/۱۴۸

**میعاد miʕād**: وخت، نېټه

پس له دړېو شـپو رخصت شو غـم اباد تـه
منتظـــره دایـــم درغلـــم میعادتـــه
نیرنګ/۱۴۳

**میګون maygun**: سوربخن، شراب رنګه

چې په مینه د میګون حسـن خـراب شـو
پـه اتـش د آتشـي شـونډو کبـاب شـو
نیرنګ/۷۹

**مینا minā**: پیاله، د شرابو کنډول

چـې مینـا بـه یـې کړغـاړې تـه نظـر
پـه سـجده بـه یـې سـوده کـړ ورتـه سـر
نیرنګ/۱۵۷

# ن

**نا پښو (ناپخښو) nāpxṣo**: بند، تړلی

کبر ورك خودي تر پښو
له حرمته نا پښو
شرعه/۱۰۶

**ناخوال nāxwāl**: ناوړه، نامناسب، ملنده، زیږ، بې ډبه، بې ننګه

که سایل په شوخۍ سوال کا
که پرې قهر کا، نا خوال کا
له بنده د بنده سوال
په څښتن لګي ناخوال
شرعه/۱۱۶/۶۷

**نار nār**: اور

نه يې ځای ددم و هلو ليده پلارته
نه يې موم د زړه نيوی شو دغه نارته
نيرنګ/۳۲

**ناسخ nāsex**: ماتوونکی، له منځه وړونکی، نسخه ليکونکی

د الويي ګوره دده چې بې پاسخ
ځای په ځای د خدای په حکم شوه ناسخ
شاه وګدا/۲۱

**ناشکېب nāsakeb**: بې صبره، تلواري

دا پيغام د ناصبور، (د) ناشکېب دی
زمونږ څه زده چې راستي کا، که فرېب دی
نيرنګ/۹۴

**ناښاغلی nāṣagəlay**: شوم، کړلی، د بد مرغۍ نښه

نــه دې نیســي نــاښاغلی
څو پــه کیــن پلــو راغلــی
شرعه/۲۰۹

**ناښې nāṣe**: ناکارې، ناوړې، ناخوالې

څه پــېښې کــوې فلکــه بــازیګر
څه نــاښې کــوې ناترســه ستمګره
نیرنګ/۱۶۲

**نت nat**: ایللی، مهار شوی، نته (د اوښ مهار چې بیا نتکۍ شوې ده)

چــې جلــب دې د اختیــار و ښکلیــو ورکــړ
پســې ګرځه اوښ پــه نتــه، نــه یــې خــلاص
محبــت کــړم د خوبــانو، اوښ پــه نتــه
د هــر چــا د ظلــم بــار وړم بــې منتــه
درومرجان/۷۹/۴۲

محبــت کــړم اوښ بــاري، پــه پــوزه نتــه
د هــر چــا د ظلــم بــار وړم بــې منتــه
نیرنګ/۶۰

**نجابت najābat**: ارواله، اهلیت، ساهوتوب، اصیلتوب

نجــابت یــې خانــه زادو دګوهــر
ســیادت یــې اعتمــاد و د اختــر
نیرنګ/۱۰

**نچوړ nacor** : خېښنلی

هسې شان سره مجلس یارانو جوړ کړ
چې عشرت یې د جهان پکې نچوړ کړ
نیرنګ/۱۷

**نحس nahs** : سپېره، بدمرغ

غــم انــدوه یــې لــه زړه لاړ ورك شــو زلــزل
بیــایې نحــس غــم آبــاد دیــار مــنزل
نیرنګ/۱۰۵/۶۸

**نخچیر naxčir** : ښکار شوی مرغه

کوم صیاد راځي ودشت ته په کینه کې
چې زړه ویني د نخچیر شویه سینه کې
نیرنگ/ ۱۵۰

**ندا nedā**: غږ، اواز

چې تر غوږه د شاهد د هوندا شوه
د امید برسوه غونچه یې په خندا شوه
نیرنگ/۱۹۱

**نر خوښ narxoṣ**: کونډه، خنجك، چنګك

ګونډې وکاږي حمید د غم له ځاهه
یارمې سازې کړې لښتې لکه نر خوښ
دیوان/ ۱۳۲

**نرس nars**: (؟)

نه چې نرم وي له ترسه
ده له ترسه، نرمي نرسه
شرعه/۱۸۶

**نصُرمن الله nasrommenallah**: مرسته د خدای له لوري ده

څو چې مل ورسره نصر من الله شو
د عزیز دراز منزل ګوره کوتاه شو
نیرنګ/۱۷

**نعم naҫam**: هو، بلې

نه مې دم لیده په ځان کې نه قدم
چې وروړاندې شوی په لاو په نعم
چې د عشق د میخانې شراب یې نوش کړ
د شعور لاو نعم یې فراموش کړ
نیرنګ/۱۱۹/۲۹

**نغر ngə̈r**: زغمونکی، سهاند

هـــم دې وي پـــه شـــان د غـــر
هـــم زغـــوتی لکـــه نغـــر
شرعه/ ۲۰۰

**نغوتان ngwətan**: نغوتاند ، منونکی، مشوره اخیستونکی

هـیڅ لـه صبره راتـه مـه وایـه ناصحـه
د دغـــې وینـــا نغوتـــان نـــه یـــم هـــر ګز
دروهرجان/۳۵

**نغوتل ngwətəl**: منل، غوږ نیول، د ښو لارښوونه، اشاره، لمسون

اســـتوار اوســـه پـــه قـــول، پـــه قـــرار خپـــل
د اغیـــار پـــه نغوتـــه مـــه قتلـــوه یـــار خپـــل
نېرنګ / ۶۸

عشـــق مـــې شـــاربي پـــه غـــرك د نـــامرادۍ
چـــې تـــر خولـــې مـــې راوباســـي نغوتـــه غـــوړه
دیوان/۲۸۵

کـه هـر څو يکـې شـانې کـاوه نغوتـل
نـه يـې ووت لـه زلفـو دورو تسلسـل
نېرنګ/۱۵۶

**نغوته ngwəta**: اشاره، حکم

چـې وینـا مـې د نـاکس د نفـس نغوتـې
دارمـان پـه غـابن مـې وچیچلـې ګوتـې
نېرنګ/ ۱۰۰

**نګاه negāh**: کتل، لیدل، ساتنه

چـې شـهره يـې پـه هر ښهر خـو شـرنګي شـوه
لاتــدې بــاندې شــنه تړانــګه نــیرنګي شــوه
وې يــې څه غــوارې بــها؟ وې مــې نــګاه
وې ښه کنـــــه قبـــــول، ولـــــې ګاه ګاه
نېرنګ/۱۲/ ۱۲۰

نګښه ngas: څپه، پیچه، پر تندي دواړو خواوو ته پراته ویښته

دا د عشــق خــوارۍ زارۍ مــې ژړلــې
مــور و پــلار چــې راتــه نیــو بېــره نــګښې
دېوان/ ۳۷۰

نګوښول ngoṣawəl: ګوډول، ښویول

مــه یــوه خــوا بلــه خــوا
نــګوښول نفــس و هــوئ
شرعه/۱۸۹

نګوښېدل ngoṣedəl: ګوډ ګوډ کېدل، تیندك خوړل

چې شي څوك په مانا نـګوښی
پــه غیبــت یــې الــم ګوښی
پــه ګیــتو بــه دا فقــط
عــارف نــه نــګوښي غلــط
شرعه/۳۶/۲۰۲

نګهت neqhat: وږمه، خوږ بويي

د چــراغ لــوګی یــې زلفــې سنبل ګون و
چــې یــې کــړی پــه نګهــت د ګل شــبخون و
نیرنګ/۱۵

نمد namad: لیمځی، له وړیو جوړ فرش

اغوســتن یــې ایینــه غونــدې نمــدو
پــه خــوارۍ کــې یــې دحســن بــر امــد و
نیرنګ/۱۱

نمري nmari: ۱- جامې، کالي، ۲- ښځینه میاشتنۍ ناروغي

هم دي سپین نمري نېك نیاو
دي ســنت د انبیــاوو
چــې نــه شــي ورتــه امینــه
پــه دا وخــت د مــېړه مینــه
دواړه څایه شرعه

نوش **nos** : زهر دارو

کـم بختـان بـه د عزیـز پـه دور وپـېش
پـه امیـد دیـوه نـوش خـوري هـزار نـېش
نیرنګ/۲۰۶

نول **nul**: ویر، کړاو، پخساك، ویلېدل، کمېدنه، بد مرغي، خپګان

څه برباد دروميي زما فرياد او نوله
پــه خــاطر د دلــبرانو نــا قبولــه
درومرجان/۹۸

وې بـــه دې ورتـــه رســـوله
ځار شـم زه سـتا لــه دې نولــه
شرعه/۵

نولل **nunləl**: نولېدل، غمېدل

سوك پـه سترګو غړوي، لـه غمـه نولـي
چې مې کښېني ملايك د غـم پـه غولـي
درومرجان/۱۱۶

نومړی **numəṛay** : نوماند، یادشوی، نوموړی

چې پـه هـېڅ سـرو سـامان نـه و نیمـګړی
ځکـه و پـه جمعیـت د زړه نومـړی
نیرنګ/۱۷

نهالول **nehālawəl**: کرل، ابادول، ودانول، خوښول، شتمنول

پرېکـوي تـر خپلـو پـښو لاندې ښاخونـه
چـې بـدي د عزیزانـو پـه زړه نـهال کـا
درومرجان/۹۵

نیاو **nyāw**: عدل، انصاف، غور، پوښتنه، څوی

دا بـې نیـاوه بادشـاهي د ترکـو واوره
چـې پـه در یـې نـه قبلـېږي د چـا عـرض
نور مې ځای د نیـاو غوښتو شو چېرته پاتې
چـې غمخـور مـې روادار پـه ظلـم زور شـو
درومرجان/۴۳/۷۰

پرتـوګ اغوسـته نـېك نيـاوو!
دی صفـــت د انبيـــاوو
شرعه

**نيايه nyaya**: ماما، د مور ورور، نيايي
تـره، نيايـه، مشـر ورور کسـه
لکـه پـلار هسـې دروند نسـه
شرعه/۱۶۷

**نيسان naysan**: پسرلی، ځرمنی
راشـه راشـه ای سـاقي ابـر نيسـانه
پـه دوه جامـه زمـا ګرانـه کـړه اسـانه
نيرنګ/۶۱

**نيستان naestan**: ددورمو ځنګل، درګه
نيسـتان يـې و دغشـو لـه درمـو
وويسـتلی نـېزه بـازو لـه برمـو
نيرنګ/۱۶۶

**نيم بسمل ninibesmel** : نيم حلال مرغه، چې لاپرې بسم الله پوره نه وي ويل شوې او خوشې کړای شي، ژوبل، پر هر ژلی
هغـه شپـه لـه بـې خوابـۍ د شـمعی دل
پرکـېده لکـه مرغـه پـه نيـم بسـمل
نيرنګ/۱۵

# و

**وا wā** : پرانستی، ایله

لـه دې ګفتـه راپـه خـوا هومـره هـوا شـوه
چــې د صــبر د کتــاب شــېرازه واشــوه
نیرنګ/۱۱۸

**وارسته wārastá** : ازاد، پخښو، خپلواك

وابســـته یـــې لـــه نـــاحقو وابســـته وو
لکـــه دی هســـې لـــه حقـــو وارســـته وو
نیرنګ/۲۴

**واز کومی wāzkúmay**: ژوندی، په خوراك خوله وازوونکی، خوړونکی

ســړی څه چــې کــل واز کومــي
رزق لـــه ســـعې د ده مومـــي
شرعه/۹

**واصف wāsef** : ستایوال، ستایونکی، توصیفوونکی

چې واصـف بـه یـې سـتایل د غـابنوډُر
بـه یـې شـود خولـې صـدف پـه دُروېـُر
نیرنګ/۱۵۷

**وامق wāmeq** : د یوه ایراني مین نرم دی

پـــه ســـهي مینـــې د هـــیرو درانجـــاړو
پـــه راســـتې دوامـــق او د عـــذراړو
نیرنګ/۹۹

**وپار wopār**: ترون، اړیکي، وفا (په سوداګریزو چارو کې)

په هغې لالچي مینې مبتلا شوې
چې له تنه پرېکوي وپار د روح
درومرجان/۲۲

که غلیم د جنګ د پاره
ورله راغی بد وپاره
شرعه/۱۹۸

**وت wət**: درز، چاود، ستو، کنده

که مې زړه د عشق په تېغ سوری سوری شو
تریوه وته دې نه کړه راته تا
دیوان ۱۵

د صورت د تور تاریك جمال تروته
کړ اغیار معنوي یارورته په ګوته
نیرنګ ۲۰۸

**وت wat**: وتنه، مینه، غونډه، ټوله

مېلمانه یې پرې صوفیان کړه
پرې یې وت مستان هاتیان کړه
شرعه ۱۵

**وتر watər**: وسه، سبك، مترد

ځو یې ته ډېر احتیاط کوې په ستر
هومره اخلي محبت د شهرت وتر
نیرنګ ۲۲۹

دم قدم د سبا ستر
زغري بویه پخپل وتر
چې په دغه ځای کې ستر
ساته نه شي پخپل وتر
دواړه ځایه شرعه

**وتنه watə́na**: مينه، پروا

هـــم دې ووځي لــــه وطنـــــه
کــه يـــي وي پــــه ديـــن وتنـــه
شرعه/۸۲

**وټ waṭ**: نيمګړتيا، زيان، شك

نـېك نيـتي شوه په سينه کـې هسـې مېخـه
چـې يــې وټ د کينــې تول وبکــه لــه بېخـــه
نيرنگ/۱۰۳

**وراشه wrāša**: وينا، بيان، دليل

څه بـه ستـا پـه وراشـه نـه خـاندي وګړي
اپـوته ګفتـګوی کـم نــه دی تــر ســانګه
دروم‌رجان/۹۸

**ورژلي waržəlay**: خوانيمرګ

حسب حـال وايـي پـه شـانې د ويـرژلـي
هغــه ســوی غمــزده پـــه زړه ورژلـــي
نيرنگ/۴۶

**ورګ warg**: د پسونو، مېږو او اوښانو د وړيو پټ. له پوستکي سره نښتې پستې وړې

کــه هالـــه وم ايلــه اوښ پـــه صـــورت خورب
اوس د عشـــق غمونـــو وويســـتم لـــه ورګه
ديوان ۲۰۶

عشق پېزوان د بـارکښي، کـه را پـه پـوزه
د فـــراق خواريــو وويســـتم لـــه ورګه
ادبي ستوري ۲۲۱

**ورم warəm**: پند، لمسون، پارونه

د بـــې شـــرمو د بـــې بــاکو
د بـــې ورمـــو د نــــاپـــاکو

**وړول wəṛawəl**: وړ کول، وړ گڼل

لــه خوبــانو ســره ځای د بحــث نشــته
کــه هــر څو ځان وړوي حميــده پــړې
درومرجان/۱۳۴

**وست wast**: مال، متاع، گټه، سود . د سيمسارۍ توکي

کــه هـر څو پــه زړه کــې مــا د زړه ارام غــوښت
دغــه وســت پــه دا بــازار کــې نــه و . نــه شــو
چــې يــې مــا پــه ســر او مــال خريــداري کــړه
مفــت دې ورکــړه و رقيــب هغــه و ســتونه
ارزان وســت بــه لــه ناکامــه وي پــرې گران
قيمتــي يــا قــوت بــه پلــوري رايــگان
هغــه وســت د محبــت پــه صحــرا مونــد شــي
چــې مونــده نــه شــي پــه ښهــر د لاهــور کــې
درومرجان/ ۷۰، ۱۳۰، ۱۳۸

پــه لبــاس د ښکليــو مــه غلــېږه حميــده
بــېش بــها و ســتونه نــه وي پــه بــازار کــې
ديوان/ ۶۷۰

چـــې د دوی لـــه پيوســـتونه
پـــېدا کـــېږي ښه وســـتونه
چــې څه وســت لــه ښاره کورتــه
مومـــن راوړي نـــور دې دورتـــه
شرعه/۷، ۱۴۸

**وسته wastá**: ۱- ډنــډ ،تــالاو، جــوهړ (جــووړ) ۲- بنــد ، پــېړه، مــنډو ۳- څارلی، ترخار لاندې

په وسـته د نس غلط مـه شـه هوښيـار شـه
چـــې لـــېوه کلـــه ودرېږي پـــه وســـته
درومرجان/۱۰۴

**وسکه waska**: سکه، ځکه، له دې امله. کاشکې

چې حاضر د عدالت په انجمن شو
لا یې زړونو ته وسکه حسن چمن شو
نیرنګ/۳۷

**وغا weğā** : جنګ، جګړه

دوږخه هنګامه ګرمه دوغا شوه
ګویا پېښه د قیامت شور وغوغا شوه
وړمه/۱۳۴۹

**ول wal**: ۱- چل، هنر، چم، حکمت، چاره ۲- زخمه، غږومبی

اول خپل ویران ویجاړ کارونه سم کړه
که رشتیا د سازول په وله یې پوه
دروم‌رجان/۷۶

**ولل wləl** : پرېولل، مینځل، وینځل

له ژړا پسې هر یك و دل خسته
په اوبو سره د اوښو وله تخته
نیرنګ/۱۱۳

**وله wlə**: ۱- ولل (مینځل) ۲- وګ: ول

د خیرنو جامو وله
دي سنت د دین په وله
شرعه

**ووی woe**: خبره، وینا، ژمنه، ویی، لوز

که څوك مري هغه دې ومري له دې وویه
بندوبست د اشنایی ویلی بویه
نیرنګ/۶۶

یار په پند د رقیبانو لاړ پوهېږم
چې له ما یې هغه عهد هغه‌ووی لاړ
دیوان (پاپلیك)/۱۰۸

**ویار wyār**: پروا، باك، عیب، غیبت، نیمګړتیا، د چا سپکه ویل. د چا بد ویل، لمسون، بدګوماني، رخه

اطلس پوش دې ویار زما له شړې نه کا
شاړ نمد کړ ایینې غوندې بستر ما
یار دې و یار زما د شوخو کتو نه کا
زه په غتیو سترګو ړوند یم، لکه بوت
دروموجان/۴/۱۷

تفحص دې په متاع کې خریدار کا
نه چې ویار په تورو سپین د دکاندار کا
شاه وګدا/۳۹

که کېږده یې د هر چا له ویاره وېره
باري شوه یې څو چنده له پلاره وېره
راز ونیاز کوئ راځئ بې له اغیاره
همخانه سره خوښي کوئ بې و یاره
نیرنګ/۹۶/۵

د بچو غوښې یې یاره
هم خالي نه دي له ویاره
زړه دې لوی کا له دیاره
دین دې وساتي له ویاره
دواړه خایه شرعه

**ویرژلی wiržəlay**: ویرجن، ویرمن

حسب حال وایي په شانې د ویرژلي
هغه سوی غمزده په زړه ورژلي
نیرنګ/۴۶

**ویسا wisā**: اتبار، تکیه

تسلي په داوینا نه ده د کړو
په دانه ددام ویسانه ده د کړو
نیرنګ/۹۴

سـل توبـــې کـــا د زاهـــد پـــه تنـــدي مـــاتې
پـرې بـه نـړدي پـه شـېخۍ کـې څه ويســـا
ديوان/۱۶

**ويلاړ wilāṛ**: د زړه غوښتنه، نيت، هوډ، اراده

لاعـــلاج لـــه ځايـــه پـــاځېده وېلاړ شـــو
د دې صيـــد د نيولـــو پـــه ويـــلاړ شـــو
نېرنګ/۵

چـــې دی هســـې بـــې پوښتنـــې لـــه مـــاولاړ شـــو
خـــواه نـــا خـــواه زمـــا د وژلـــو پـــه ويـــلاړ شـــو
نېرنګ/۲۰۳

چـــې د ظلـــم پـــه ويـــلاړ شـــي
دهـــــر څه برکـــــت لاړشـــــي
هـم چـې مـړ پـه څه ويـلاړ شـي
پـــه هغـــه خيـــال بـــه ولاړ شـــي
چـــې اســـمان تـــه پورتـــه لاړه
ډکـــه خـــوا لـــه دې ويـــلاړه
چـــې شـــهوت پـــه دا ويـــلاړ
ارتينـــــې نـــــه شـــــې ولاړ
ځلوږواړه ځايه شرعه

ويـښ او ده. ناسـت ولاړبـې عشـقه نـه و
په خاطر کې يې ويـلاړ بې عشـقه نـه و
يـــوه د ســـاه و ښکلـــو لـــه وېلاړه
سـم پـــه ســـم د دواړو ســـاه وخته لاړه
شاه وګدا/۵۲/۲۰۲

**ويلاړل wilarəl**: په زړه کې لرل، مرادېدل، په نيت کې لرل، ګڼل

شـــپون، غوبـــه خکـــه ســـنګدله ويـــلاړه شـــي
چـــې روزګار کـــاندي لـــه کـــانيو، د ببديـــا
د روومرجان/۲

چـــې صحـــت پکـــې لـــه رنـــځه ويـــلاړه شـــي
د هغـــو دارو تـــر څه، خـــواره، خـــواره شـــي
شاه وګدا/۱۷۱



**هـارل hārəl**: ۱- ځېل کـول، سـرتمبګي، اړمـېدل، پـر ځای درېدل ۲- ايلېدل، ازمېښت

کـه هـر څو وربـاندې وهـاره ځان عقـل
عـاقبت د عشق په کـار شـه حـيران عقـل
ديوان ۱۸۲

**هاړه هوړه hāṛa huṛa**: هيبت، بوږن، شور غوغا، شور زوږ

وايــي هســې چــې هجـران پــه هـاړې هــوړې
وويســـتلې پـــه يـــوه ځل د عاشـــق دوړې
نېرنګ ۱۳۳

**هپ hap**: غپ، غپا

لــه ارامــه يــې شـو تــن پــه تــاب و تــپ
د زحمـت ليونــي سـپي کـه پـه خولـه هــپ
شاه و ګدا ۱۷۳

**هپه hapa**: بريد، يرغل، هځه، په داړې پسې وتې دله

زړه مې، ووت د ديدن د خنګ پـه هپـه
ولــي غشــي د نظـر پــه ښي پــه چپــه
درومرجان ۷۷

**هد هد hodhod**: ملاچرګك

تــاج پـــه ســرد هــر يــوه لکـــه هدهــد
پـــه تونـــدی د آهـــو اخلـــي تعـــهد
نېرنګ ۱۲۸

**هراس herās**: وېره، ډار

چې يې واخيسته نېزه چسته چالاکه
ځني وشو د فلك (د) ملك هراس
نيرنګ/۱۲۶

**هرګور hargor**: هرګوره، مطلق، بېخي، البته، هرومرو، په هره توګه، په هيڅ توګه

لُور لره ستر د کو.
غنيمت ګڼه هر ګور
شرعه/۱۵۰

رقيبان راته هر ګوره د يار ډېر شول
يو سړی څه کا د ډېرو سپو په خولو کې
ديوان/۳۷۷

**هريسه harisa**: د کمزورۍ د مخنيوي لپاره د غنمو له اوړو، غوښې او شيدو جوړېدونکي نرم خواړه

په حديث کې ده ښاغلې
هريسه سنت راغلې
هم لري هريسه خور
دڅلوېښتو سړو زور
شرعه/۲۱

**هلک halək**: ۱- کوچنی، کمکی ۲- کم، لږ

د خوبانو هلك غم به يې زور زوم کړي
كه رستم د زماني وي پخپل زور کې
د يوه تن اندامونه دي بېشكه
لوی هلك بني ادم په صورت سم
درومرجان/۳۰/۶۰

**هلکه haláka**: هلکينه، هلکواله، وړوکوالي، کوچينوالي

په هلکې لا وژلې لوته
د دنيا د عار له کوته
شرعه/۱۴۳

**هلواک halwāk**: تلوسناك، بېړندی، تلواري،وړ سترګی

د هغــه کلــه پــه تخــت بــاندې ارام شـــي
چــې يــې زړه وي پــه ښه مــخ پســې هلــواك
دروموجان/۵۳

**همآغوش hamāğoš**: ملګری، يو ځای، غېږپرغېږ، خوا پرخوا . غاړه پر غاړه

ســرتر پايــه لکــه مــهر شــفق پــوش و
د ګيســو لــه تــوره شــامه هــم آغــوش و
نيرنګ/۱۴۲

**همای homāy** : يو خيالی مرغه، چې وايې پر چايې سيوری وشي، پاچاکېږي

دغونچې پـه خېريـې ځان پـه شـالو ونغـښت
د همـای بـه خېريـې بخـت پـه بـالو ونغــښت
نيرنګ/۶۲/۶۴/۲۱۹

**همخانه hamxāná**: ګډ کوری، يو ځای مېشت، ګډ مېشت

رازونــازکوئ، راځئ بــې لــه اغيــاره
همخانــه ســره خــوښي کــوئ بــې ويــاره
نيرنګ/۹۶

**هوا خواه hawāxwāh** : غوښتونکی، پلوي، لېوال، مشتاق

هــوا خــواه يــې پــه ســرود د اورېدو
مکــر رچنــدېڼ کــړ پــورې دليــدو
نيرنګ/۱۳

**هواره hawāra** : اواره، پردېس، بېکوره، لولنګر

هــواره کــړه همراهــی ددې کوتــېو
ډرپېيــه نشــي پــه لړکــې د مشــکېو
نيرنګ/۴۴

**هوده huda**: ووده، دم، پوکی

پس لـه دې دې هـوده ماتـه رسـېدلې
کـه پـه تـاد چاچـامې وبلوسـېدلې
نیرنګ/۳۹

**هور hur**: (؟)

د حـاکم نبه او بـد هـور
پـه هـر څه وکـا ظـهور
په هر کار چې څوك مشهور شي
پـه بـلا بـاندې بـه هـور شـي
شرعه/۱۹۲

**هورو تور horotur**: لاپې، دوړې، پرړې

مرنـو سـوّرود جنـګ پـه هوروتـور
کـړه تـېزه همسـا پـه لاس کـې د مغـرور
شاد وګدا/۱۹۰

**هوښ هوښ hoṣ hoṣ**: وش وش، وای وای (ددرد او ارمان له امله)

خصوصـاً هغـه عزیـز هسـې بـې هـوښ و
چې لـه ډېره دوکـه (درده) پـه هـوښ هـوښ و
نیرنګ/۲۲

**هوک huk**: ۱- نبغ، شخ، پرسېدلی ۲- په سوچ کې ډوب

د فلـك غـوړېکـې نـه دي نـا خوړلـي
څکـه ږدې هسـې د سـتار پـه تنـدي هـوك
هسـې بـاد دی نفـس شـیطان در کـې پـو کـړی
چې پـه نـر نـا حقـه بـړوس ګرځې هـوك پـوك
دروهرجان/۵۳/۳۵

**هیجړی hijṛay**: هیجړا، ایجړا، نربنځی

کلـه ښځې، کلـه نـر، کلـه هیجـړې شـي
کلـه دېو، کلـه پـېری، کلـه سـړی شـي
نیرنګ/۱۹

**هیر hir** : د یوې پنجابۍ کیسې اتله ده

پــه ســهي مینـــې د هـــیرو د رانجـــاړو
پـــه راســـتی دوامـــق او د عـــذر اړو
نیرنګ/۹۹

**هېواد hewād**: ۱- د وطن. مملکت ۲- لرې وطن، بېدیا

بـــد نصیـــب لـــه نـــزدې یـــاره
څرنـــګ لـــرې پـــه هـــېواد کـــړم
دیوان/۱۹۱

کـه هـر څو یـار تـه نـژدې د زړه پـه بـاد یـم
پـه صـورت چـې ځنـې لـرې پـه هـېواد یـم
درومرجان/۱۴۲






# ی

**یاوه ګوی yāwagoe** : چټي ویونی، اپلټې ویونکی

چـې بـې شـرم، بـې حیـا شـوخ، یـاوه ګوی وي
هـــم هغـــه بـــه لـــه میدانـــه وړی ګوی وي
نیرنګ/۱۸۹

**یکلخت yaklaxt** : یو مخیز، په یوه هېر، یو واریز

چـــې خوٰاجـــه د مـــلا زړه یـــو وړ یکلختـــه
نـور یـې واخیسـته یکلخـت ورسـره سـخته
نیرنګ/۵

**یون yun** : تګ

زه پـه حـال د بلبـل نـه ژاړم چـې چـون شـو
هـر چـې شـومین عاشـق و پخپـل یـون شـو
نیرنګ/۲۱۳




## د احسان خپرندويې ټولنې اساسنامه

**لومړۍ ماده:**

احسان خپرندويه ټولنه ملي، کولتوري اوعلمي ارزښتونوته دخدمت په انګېزه يوه ناپېيلې او خپلواکه اداره ده، چې يوازينۍ هيله يې دليکوالو او قلموالو هڅونه اودعلمي بهير پر مخ بېونه ده.

**دويمه ماده:**

احسان خپرندويه ټولنه (چې مرکزيې سملاسي په پېښور کې دی) دهغو ليکوالو د آثارو خپرول خپله کولتوري اوپوهنيزه ژمنه بولي، چې دخپراوي وسه اوامکان يې نه لري.

**دريمه ماده:**

احسان خپرندويه ټولنه دخپرېدونکيو آثارو په غوره کولو کې دېني او علمي معيارونه داصل اوبنسټ په توګه مني.

**څلورمه ماده:**

احسان خپرندويه ټولنه د چارو دښه سمون اوپرمختګ لپاره يوه علمي جرګه ګۍ لري. چې غړي يې ديني، علمي، ادبي، سياسي، ټولنيز او مسلکي شخصيتونه دي.

**پنځمه ماده:**

ټولنه له ليکوال سره د اثر په چاپونه کې د خپلمنځي موافقې له مخې چلن کوي.

**شپږمه ماده:**

ټولنه د چارو داسانتيا اوباوري کېدو لپاره دخپرېدونکيو آثارو کمپوز او پروف لوستنه پخپله دليکوال پرغاړه پرېباسي.

**اوومه ماده:**

ټولنه دملي وحدت دټينګښت اصل ته په پاملرنه په ملي او رسمي ژبه پښتو او رسمي ژبه دري دآثارو خپرول خپله کولتوري اوملي دنده بولي.

# احسان خپرندویې ټولنې خپاره کړي؛

- د د ستارنامې سپړنه — عبدالقیوم مشوانی
- لوړ منارونه — محمد یوسف ملاخېل
- سوې کړېکې — پاینده محمد کرېه وال
- دامونه او دانې — محمد یونس خالص
- طلايې مرغان — حفیظ الله تراب
- د پیغمبري مکتب اتلان — عظیم الله عظیمی
- مهاجرین افغان درتهء اسمان اروپا — عبدالاحد عشرتی
- لویه جرګه اند ښننې او امیدونه — عبدالهادي ملا خېل
- سیاست جهان بزرګ و دنیای اسلام — عبدالاحد عشرتي
- د اسلامي عالم نن او پرون — محمد یونس خالص
- وییزېرمه (لغوي پانګه) — محمد آصف صمیم
- عقل، تقلید او دنیوي ګټې وټې — محمد یونس خالص
- یکی بگو دوتابشنو — عبدالباقي هیله من
- د عبدالحمید مومند فرهنګ — محمد آصف صمیم

احسان خپرندویه ټولنه ـ پېښور
خپرنې لړ (۱۴)